لمنځـــي په غـــرونو گــــډیدلي درته
راتلي له غـــيــبـو دســتـــار سندرې
فطرت شـــهــبـــاز د هوا ونيـــو په لاس
خـــورې ورې شـــوې د ابشـــار سندرې

❋ ❋ ❋

د تورو لړو شـــپــــې چې کــــډه وکــړه
د هسک په باغ کې شين بهـار ښکاره شــو
خـــورې ورې راغلي زريـنې مــرغــۍ
يو نـوراني د نـور چنـار ښـکـاره شـــــو

❋ ❋ ❋

هغـــه رڼې هغـــه وړانګينې مـــرغـــۍ
د ځنګلونو پـه شــــين غـــر پـريـوتې
چيـــرته يې ځـــاله د ځـــيــړۍ پانه وه
چيــرته په څـــانګو د نښـــتـــر پريوتې

د بوډۍ تال د غــــرنو جــــينكو
په گـــلالي ښكلي گـــودر زنگيـــده
ته وې زمـــا د تخـــيل غـــيـــږه كـــې
په وړانگين مـــزي مـــازيگر زنگيـــده



لمر دې په فـكر كـــې لـه غـــره پريوتـه
درنـو تيـــــارو د بـوډۍ تال وشكاوه
روڼ تصـــور دې غـــيـــږ كـــې ونيـــولم
شـــپـــې تسلسل زمـــا دخـــيـــال وشكاوه





د زړه رحیل باندې خوره مې د کتاب غوندې یې
ته د زبور د ایتونو انتخاب غوندې یې
د سترګو جنګ سره جرأت د وصال کله وکړي
نظره ته زمونږ په منځ کې د حجاب غوندې یې
سپینې اوبه زما نصیب ته تورې خاورې ګرځي
یا خو جانانه لکه وهم یې سراب غوندې یې
پیغام د مینې دې لیکلی د موسکا په پاڼو
ته صحیفه د رنګ ونور یې د ګلاب غوندې یې
ورمه چې ستا په زلفو راشي نو نغمه نغمه شي
ستا په ښکالو کې سر او تال دې د رباب غوندې یې
زه خو یو سوال یمه راغلی د عدم له سینې
یوائې ته په کایناتو کې ځواب غوندې یې

## د جبرائیل د خولې خبره

وايي ښايسته ده دومره هغه جينۍ
چې کاينات ورباندې فخر کوي
وايي چې نوې اداګاې لري
خو روايات ورباندې فخر کوي



وايي مشکينې زلفې ونه ګنې
خيال يې بيان ته څه چاره نه لري
وايي چې غوره خاموشي وګڼه
زور يې تشبيه استعاره نه لري



وايي وريل يې لکه شپه د قدر
وايي سجده باندې جهان راولي
د پرښتو به درته څه ووايم
رومبي اسمان ته به يزدان راولي

وايي تندی لکه هنداره لري
خو نه ده ستا د نظارې لپاره
خدای جوړه کړې ده د نور په ګوتو
د خپل وجود د ننداري لپاره



وايي د خال ور وزو يې غبرمه کوه
هغه قاتله يې په زور ګرځوي
د پسرلي ورځو کې ښه ده په کور
ګنې په شين فصل به لور ګرځوي .



وايي بانه کاږه واږه د هغې
سم بارانونه په ځيګر جوړوي
جواز يې نشته که يې غشي ګنې
له ځايه نه ځي خو پرهر جوړوي

وايي سينه يې لکه تخت د حسن
ويلی نه شم چې د عرش سيمه ده
ورمه که هم راشي ډ ويېرې په کې
داسې وريښمو باندې فرش سيمه ده



وايي چې ږدي قدم په خاورو کله
ځمکه اسمان سره سيالي شروع کړي
گرد يې د مخ د پلوشو په رڼا
د کهکشان سره سيالي شروع کړي



وايي ادا ده د فطرت د حسن
دې زمانې يو کرشمه کړې ده
د «شو پنهار» اروا شکست منلي
ورته ئې سل ځلې سجده کړې ده

وایي له تورو ستر گو نور وروي
راڼده به هم هلته سحر ومني
که مادیینو یو نظر ولیدې
بې فلسفو نه به محشر ومني



وایي چې زړه ورته حرا ، حرا کړه
د جبرائیل د خولې خبره ده بس
سالکه نور به درته څه ووایم
له تانه لویه سخنوره ده بس



ځمه ورځم د سراو تال کلی ته
د ستر شاعر دغه سندره غواړم
خدایزده که دا ارمان پوره شي زما
د ځان نه لویه سخنوره غواړم



د دوا ړو سترګو به دې رام ساتې جينۍ اسونه
دغه مغرور دغه سرکش دبزکشۍ اسونه
په ترخ کا ته څه ؤ، جلال ؤ د خوشحال د تورې
د زړه صحرا کې مې په ځغل وو دوه سيلۍ اسونه
تمېـې لري، خو برندي بانه يې هم ووينه
په غشو بار دي د وطن د ملالۍ اسونه
دا به په ډيرو زړونو ودنګيږي صبر وکړه
چې ځغلوې دغه بې واګو بې ګدۍ اسونه
په ايتمي وسله سمبال دي خمارونه لري
نن خو با ګرام لمبه کوي د ليونۍ اسونه
زما دروح په شهراه ګوزه څه په د ګړ درومي
دغه سرسام، دانيزه باز دابړبوکۍ اسونه



تاچې راکــړی د ســرور احــســاس

راته پیکه شـو د منصــور احـســاس

په تورو ســتــرګــو کــې رڼا وکــري

ایره ، ایره د کــوه طور احـســاس

ســتــوریه څــه وایې خندایې وکــړه ! ؟

بس تـخنولې ده ضــرور احــســاس

ډبرین زړه مــې ســتــا شــغلو تراشلی

څنګه به نه کــوم د نور احـســاس

پښــتنې تاتــه سل ســلامــه زمــا

چې درســره دی د غــرور احــســاس

ســالکه دا غــزل دې مــرګ نه لري

په دې کــې کړی دی ظهــور احــســاس



چاکیسه دجنتي د گور کوله
ستا په غیږه کې خوبونه مې رایاد شول
څه نسبت دې د شرابو سره شته دی
ته مې یاده شوې، جامونه مې رایاد شول
د فطرت د خواخوږۍ خبرې پرېږده
د لاله پر زړه داغونه مې رایاد شول
څه ادا خو دې پردیس مازیگر وکړه
چې د کلي گودرونه مې رایاد شول
د کابل حورو نه تور لوگي تاوشوي
ایره شوی جنتونه مې رایاد شول





حسن صوابي جامې اغوستې دي
زړه مې غذابي جامې اغوستې دي
تړې نظر ونه وړ پسې دي ټول
ښکلي سرابي جامې اغوستې دي
هسې مې روح نه دی د وړ مې په څیر
تا جوړ ګلابي جامې اغوستې دي
میاشت به زما بیا په میکده کې وي
بیا ئې شرابي جامې اغوستې دي
تش په اسویلي به تړي وتلې ئې
نن دې حبابي جامې اغوستې دي



چې مې لېدلې لا رانه د سترګو تورې نه وو
د روح اسمان کې مې تياره وه په کې ستورې نه وو

شيخه قبله منم ! خو څه وو ايمان چې لېده
ځکه اسمان زما نه ورک وو هلته لورې نه وو

خيال مې د روح په جهان وېنځو د شا تو بحر
چې يې په خوله کې را اوچت کړې داسې تورې نه وو

د هغه بام د پاسه لمر نن عجيبه راوخوت
پخوا خو ده باندې دا زلفې ، زلفې سيورې نه وو

وړاندې مې زړه داسې د ښکليو مينې نه ؤ وړی
حسن کې زور نه ؤ که مونږ دومره کمزورې نه وو



د احساساتو شور ترې مسته برېوکې جوړوي
دې اهوچشمې ته به زړه لکه صحرا پرانیزم

سوال مې عادت نه و، تا غواړمه الوت يې هير دی
هسې عبث مې اوس وزرې د دعا پرانیزم

زړه مې دخيال گوتو ته راغی، مضطربې يې کړې
نن يې تنې په تصور کې د قبا پرانیزم

د تورې شپې لباس وباسم، سپين سحرا غوندم
ځم د خوشبو پسې به غوټې د مسکا پرانیزم

روح د زردشت يې دليمو په اور کې ومو سيزي
چې يې گريوان لکه کتاب د اوستا پرانیزم

د فاطمي سيرت ميرمن وايي تصوير نه لرم
لکه البم به تخيل د مصطفا پرانیزم

## « د تخلیق جواز »

مونږ چې راتلو دې مجازي بازار ته

رنځې سکې چا د عدم په جیب کې واچولې

یوه سکه په کې زما په نصیب ورسیده

دغه سکه زما د زړه سکه وه

چې پرې انځور د تا د حسن جوړ ؤ

ما دا سکه ګرانې تراوسه پورې وساتله

ته که انکار کوې اوس دغه سکه نه پیژنې

بیا به مجبور یم انتظار به کوم

چې د محشر بازار یې پرانست زه به دغه سکه

په یوه شرنګ د ستر صراف مخې ته وغورځوم

ورته به ووایم چې یه ماالکه!

زه د انصاف یوه ارزو لرمه

زه دې د حورو د غلمانو کیسه نه کومه

زه درنـــه نـــن ددې ســـکـــې پـــه بـــدل
ددی انځـــور هغــــه مـــجـــاز غـــواړم
کـــه نـن کــــوټـه ده نن هم نـه چلیـــــږي
بیـــــا د تـخلیق به یې جـــواز غـــواړم





هو حافظه! ستا دري ژبه خوږه ده
پرې زما شاخ نبات خبرې وکړې

په صحرا مې اهوچشمي صنم ولید
په هر کاڼي کې منات خبرې وکړې

تغیر دې د فطرت، که بخت زما دی
ملکې لکه د شات خبرې وکړې

له صفاتو ماورا تورو لفظونو
څه رڼې، رڼې د ذات خبرې وکړې

وايي سره غوټۍ چې ګل شي ژوند یې لاړه
کوم سپرلي داد پسات خبرې وکړې؟

# «اراده»

شـابـه درومـه لا رويـه ځـه دځـان جـهـان تـه ورشـه
کـاينات پـه کـې شـغلـه ده د جـانـان جـهـان تـه ورشـه

لا رويـه تـه خــبــريـې د وجــود د وســعــتــونـه
د رنـگـونو کـــوه قـــاف نـه د نـورونـو ښـا پـيـــرونـه

دا د رنـگ ځـپـې خـو ويـنـې دا پـه خـپـلـه سـتـا نـظـر دی
کـه شـفـق کـه پـسـرلی دی کـه سـحـر او مـازيـگـر دی

دا نـغـمـې د بلـبـلانـو ، د بنـگـړيـو گـونـگـروگـانـو
دا د زرکـــو ســـوې چـغـــې دا اواز د تـاروگـــانـو

دا لـه بـلـه ځـايـه نـه دي سـتـا خـواسـو کـې مـسـتـي ده
بس کـه دغـه درنـه لاړه بـوړنـوونـکـې خـامـوشـي ده

ته وړوکی ګـــوره نه یې کـــاینات دې یوه ذره ده
اوس ویلی درته نه شم دا خـــولویه فلســـفـــه ده

ستا په خاوره ګل وجود کې لا محدود نګهت اوسیږي
ســـمندر دی د نورونو نظر ســـتـــړی شي ډوبیـــږي

دا دخیـــال کـــمزورې بتـــې انتـــهـا مـــوندلی نه شي
لامـــبـــوزن عـــقل ډوبیـــږي بله خـــوا مـــوندلی نـه شي

پس له خـــدایه لارویه، تـه خـــالق یې ته فنکار یې
کـــاینات درنـه تاویږي تـه خـــاوند د لوی مـــدار یې

څه په رب باندې دې سپـارم خو وهمـونه دلتـه پرېږده
لکه ګـــرد د خـــپلې لارې اســـمـــانونه دلتـــه پرېږده

ټول حسونه دې راويښ کړه دغه وريځې به زلفان شي
چې شفق د يار سينه شي لمر دې څرېکه د ارمان شي

لا رويه پورته لاړ شه نور ښارونه مخکې هم شته
دا خو يو تار د رباب دی نور تارونه مخکې هم شته

تور و سپين کې د ليمو دې بس همدغه تلوسه ده
چې لا هلته ځنګه جوړه دا دخيرو شر کيسه ده

وايي هلته زړونه ريږدي د ښکلا تخليق شروع دی
نوراني ستر ګې بليږي د رڼا تخليق شروع دی

د رازونو ستوري ناځي نظرونه درنه هير دي
بدنصيب غونډې مرغه يې وزرونه درنه هير دي

ته خو بت يې لا ولاړ يې، که روان شوې نوژوندی يې
پس له هغه لويه ذاته بل خالق يې ميړنی يې

لا رويه اراده ده بل مزل په دې کې نشته
هر پړاو به دې منزل شي خو منزل په دې کې نشته



شـــور د ښـــاريه کـــې مـــې ونه مـــونده

ځم له بيـــابانه ښکلا غـــواړمـــه

پروت په کـــې بودا د نيـــروانا په خـــوب

زه لـه تورو کـــانو رڼا غـــواړمـــه

ښـــه چې د احـــســـاس لمبـــې کـــرلی شم

بيـــا خـــو به له واورې نڅـــا غـــواړمـــه

غـــــــرېږې لـه بـنـگړو دانـاالحـق اورم

دارکـــې يې د ليـــچـــو بقـــا غـــواړمـــه

ذوق او انتـــخـــاب ته مـــې لېږ وگـــورئ

زه د کـــايناتو ادا غـــواړمـــه



لطافت ته يې چې گورم د حباب په شان جينۍ ده
د احساس په موج کې ډوبه د ذرياب په شان جينۍ ده
اور د مينې بله کړې د خزان په تروږمۍ کې
دا رنگينه شان ډيوه ده ، د گلاب په شان جينۍ ده
هغه زړه زما د خاورو اوس د زرو ښاريه ده
له فضايې د اوريږي ، د ماهتاب په شان جينۍ ده
ماله خدايه خدايږو غوښتې پرښتې پرمونږ خبرې
د سرور وطن نه راغله د ثواب په شان جينۍ ده
چې پر ذهن راخپره شي کاينات د نور څپه شي
څه عظيمه شان نشه ده د شراب په شان جينۍ ده
د همدې په وزرونو د مکان پنجرې نه ووځم
دا شهکار د غيبي حسن ، دا د خواب په شان جينۍ ده



زړه نرۍ کړ او ښکو سپک شو لکه پانه
خو پرې لیک څو افسانې ئې ورانې نه کړې
بلا شندې د بیلتون بلا که وکړې
څو نازکې یارانې یې ورانې نه کړې
مونږ به ځان د دیرحرم بنیاد کې کیږدو
که ودانې میخانې یې ورانې نه کړې
پیغلتوب دې د پر د شګو کور ګې رنګ کړل
ستا په شونډو بهانې ئې ورانې نه کړې
دې فضا داسې سیلۍ لیدلې نه ده
چې زمونږه اشیانې ئې ورانې نه کړې

گوره ستړي يې وزرونه د پرديس صحرا کې ګرځي
دا د دنګو غرونو د عقاب په شان جينۍ ده
په شين سين به يې ورنه کړم د لفريبې اداګانې
زما خوښه بس همدغه د سراب په شان جينۍ ده
زه يې بيرته تاند زلمی کړم د وختونو جوګ يې مات کړ
راته ژوند يې سرچپه کړ انقلاب په شان جينۍ ده
که زما په غيږ کې راغله دغه ستوري به ټول ناڅي
بس له سوزو سازه جوړه د رباب په شان جينۍ ده
ته خو ورک يې لا سالکه د دوه تورو په ښکلا کې
د لکها زرو غزلو د کتاب په شان جينۍ ده





مطرب چې ستـرگـې سرې کـاندي تارونه وښندي
شي تـانده وچـه ښـــانـگـه او رنـگـونـه وښـنـدي

گلرنگه مناره ده گـوره ســتـرگــې اشـارې يې
دوې غـــبـــرگې توتـکـۍ شي وزرونه وښـنـدي

هيڅ داسې سکه نشتـه چې د اوښکو نور يې واخلي
سپين ستوري تر صبا هم که جيبونه وښندي

د مـشکو بربوکـۍ راشـۍ صـحـرا ختن، ختن شي
چې پـيـغلې د وطن مـــې اوربلونه وښندي



د زړه پرغـر مـې د ځنګل په څیـر خوره وره یې
د ژوند نقـشـه یې د ازل په څیـر خوره وره یې

د پریشـانۍ توره دوره به هله ختـمـه ګـنم
چې مې په غیږ کې د اوربل په څیر خوره وره یې

ستـا د نظر له غشـو رم مې د اختـیـاره وتی
په هره لاره د اجل په څـیـر خـوره وره یې

لکه تېـپه شـې د غـوټۍ په زړه کـې غـونډه منډه
په سـر او تال کـې د غـزل په څـیـر خـوره وره یې

سپـینې جینۍ نه مې کـفن یې نه د ګـور ملګرې
په جنازه مـې د ململ په څـیـر خـوره وره یې

# دناهید کتاب خپرولو مؤسسې له خوا خپاره شوي ادبي اثار

| | |
|---|---|
| ۱- ساړه بادونه: | داسدالله غضنفر دلنډو کیسو مجموعه |
| ۲- تبجنه سپوږمۍ: | دپروین فیض زاده ملال دشعرونو مجموعه |
| ۳- څلورمه لار: | دایمل پسرلي لنډې کیسې |
| ٤- زمونږ دکلي پاڼې: | دزرین انځور لنډې کیسې |
| ۵- دلته لږ زمونږ اور، بل دی: | په لندن کې دمیشتو پښتنو لیکوالو دلنډو کیسو ګډ جونګ |
| ٦- ماته شپېلۍ: | دنازک خیال شاعر استاد محمدصدیق پسرلي دغزلونو غونډ |
| ۷- له نرګسه تر نرګسه: | دکاروان کیسې |
| ۸- سپینې پاڼې: | دپروین فیض زاده ملال دلنډو کیسو مجموعه |
| ۹- مات غمي: | دعبدالهادي هادي دشعرونو مجموعه |
| ۱۰- دنکریزو پاڼه: | دباز محمد عابد دشعرونو مجموعه |
| ۱۱- شعر پېژندنه: | داروانښاد استاد روهي اثر |
| ۱۲- ډیوټ: | دګوهر رحمن ګوهر دشعرونو غونډ |
| ۱۳- چنار خبرې کوي | دکاروان دشعر مجموعه |
| ۱٤- رجرومه | دګوهر رحمن ګوهر دشعرونو مجموعه |
| ۱۵- دطاووس بڼکه | دمصطفی سالک دشعرونو مجموعه |



ډېرې کرشمې د ازل پاتې دي
لا خو مرحلې د غزل پاتې دي

ځېرې به اغزي د زړه تنهاکې اوس
نورې خو مې پښې له مزل پاتې دي

خدایه په صحرا کې سېلۍ رامه شه
اوس هم نخښانې يې د پل پاتې دي

زړه د زلفو لاندې به راګوري يار
ودرېږه لاشپې خودغل پاتې دي

صبر راته وکړه مرګه مه راځه
ډېرې معماوې له حل پاتې دي



پیغلتوب ئي په سینه کې چې طوفان شي
مضطرب وجود يې بحر د رومان شي
دا د خیر او شر تلل هم معما ده
اهریمن راته هنداره د یزدان شي
نور خبر د ژوندانه له را زه نه شوم
چې ارزو مې زره ته راشي نو ارمان شي
زما ستوری او س د بل په مدار گرځي
دا فلک به په ما کله مهربان شي
انتقام به زه له خپله ځانه اخلم
هغه هله ما ازار کړي چې مې ځان شي
که تیاره ده خو جامو نه بهر نه شي
نه چې ستوري په غلطه لار روان شي



نه مـــې جنده شـــتـــه نه رهبـــر لرمـــه

شـــمله مـــې رپې خـــپل نظر لرمـــه

د زړه منشـــور مـــې په رنګونو لامـــبي

ښـکلـې دلبـــــره لـکـه لمر لرمـــه

راته دښـــار ښکلي اریان غـــونډې دي

زه چې خـــویونه دخـــیـــبر لرمـــه

لا خـــو مـــې خـــیـــال د رنګ ونور چینه ده

لا تصـــور د خـــپل ګـــودر لرمـــه

په تابه کله بدګـــمـــانه نه شم

په خـــپله مـــینه زه باور لرمـــه



د مینې لاره کې څه بل شان امتحان راځي
ړومبی قدم د هر سړي دلته په ځان راځي
د هر یو شړنګ نه ئې ښځیرې لاهوتې سندرې
را ته الهام اوس په بنګړو کې د جانان راځي
نور مونو عشق درسوایۍ پړاو ته ورسیده
بې ارادې مې، ستا نامه اوس په زبان راځي
د زلفو سیورې به په چاوې اوښکې زه څڅوم
وریځې په کوم وطن خورې چیرته باران راځي
هغه به څه دلته د ګرد په قافله کې راشي
د چا دلارې په هر ګام چې کهکشان راځي
سالکه خدایزده که څوک ستا غزل ته غوږ ونیسي
د «حسین» ښار نه د سندرو به «کاروان[1]» راځي

---

۱- زما ملګری شاعر پیر محمد کاروان

# کوډې

زما محبوبې د ښکلا معجزې
ستا په لټون کې ارتقاء پټه ده
ستا د مونډو په ليونۍ هڅه کې
ځمکه اسمان او هره خوا پټه ده



د ګل ورږمه له خوده وتې ښکارې
ستا ملاقات ته په سفر وتلې
نرګس که ځان ورته ليمه ليمه کړ
تربې ليونی لکه نظر وتلې

ستوري هم ګرځي ستا پوښتنه کوي
د اسمانونو دروازو ته ورځي
ستا په جمال جلال مينې وريځې
پرک د بريښنا ته انګازو ته ورځي



لمر دې د ورځې عادت کړې په يون
د خپل زړګي د وينو دارې څاري
سپوږمۍ د وريځو شا ته غلې، غلې
ستا د راتلو په طمع لارې څاري



زما محبوبې د ښکلا معجزې
ستا په لټون کې ارتقاء پتېده
ستا د موندو په ليونۍ هڅه کې
ځمکه اسمان او هره خوا پتېده

سمندرونه غرونه غرونه کېږي
په زړه کې ستر ستر طوفانونه لري
په مرغلرې د تخلیق ارتقاء
ستا د موندلو امیدونه لري



ستا د زلفانو دلیدلو په نیت
اوروکی په ځان د یوه باروي
میاشتې کلونه دي دستر گو په نوم
په اورو تـوله زمانه باروي



ښکلي په خپل وجود کې تالتوي
هره شیبه مخ ته هنداري نیسي
په کایناتو دي جوړ کوډي کړي
چې تولې لاري در ته لاري نیسي

زما محبوبې د ښکلا معجزې
ستا په لټون کې ارتقاء پته ده
ستا دمونډو په ليونۍ هڅه کې
ځمکه اسمان او هره خوا پته ده



څوک ځانته نوي شان حسونه جوړ کړي
ستا رنګ ونور په پيمانو کې ويني
د حقيقت دنيا کې ستړي شو تول
څکه دې کړه وړه افسانو کې ويني



ستا دوجود نه پرته ګرانې زما
دکايناتو حرکت به نه وو
سره به پاتې وه کيسه د حسن
نوم او نشان د محبت به نه وو

د ستر شاعر وروستی سندره ئې ته

ته د هر څیز د تلوسې محور ئې

راشه زما د زړه په تار تاوه شه

خدایږو زما د ورځې شپې محور ئې



زما محبوبې د ښکلا معجزې

ستا په لټون کې ارتقاء پته ده

ستا د موندو په لیونی هڅه کې

ځمکه اسمان او هره خوا پته ده





ستا دسترګو کتاب وایم ستا نظر زما خوښیږي
اوس د مینې په مذهب شوم پیغمبر زما خوښیږي
تا د اور په بیه اخلم خلیلي سوداګري کړم
په اعجاز جوړ شوی بت ئې ستا آزر زما خوښیږي
لمړه زر شه اور ورین شه بیا ګودر لمبه کړه
دا دوزخ زما جنت دی دا کوثر زما خوښیږي
د ځلورو سترګو جنګ کې بارودي نظرونه ووري
دا دامن ارتقاء ده دغه شر زما خوښیږي
ستا په شونډو کې مسکاده د رقیب په تندي ګونځې
اوس موسم د پسرلي شو اوس خوغر زما خوښیږي
د یوسف سترګې بانه ء دي ګوره یو تربل حسین دي
پښتنو باندې مین یم لراوبر زما خوښیږي
غلچکي نظر دې یاره زه منزل د عشق ته بوتلم
خیر فطرت ئې که د غلو دی دا رهبر زما خوښیږي
مونږ ئې تول منلي نه دي په جدا مسلک روان دي
خو ملګرو خدایزده ولې قلندر زما خوښیږي



زه لکه نظر ستا د موسکا په غیبر کې پریوتم
زلفې دې خورې شوې د هما په غیبر کې پریوتم
چیرته ځم او ولې ځم خوشبو غوندې حیران یمه
هسې څو لحظو ته ګلې ستا په غیبر کې پریوتم
ما د جنتې د ګور رنګینه فضا ولیده
زه چې پټې سترګې دلیلا په غیبر کې پریوتم
زیاته مې ملګرو پریشانې شوه د زړې په دود
څه که د لمر مخې د رڼا په غیبر کې پریوتم
تې د کابل غرونه شو د ننګ شیدې مې وڅښلې
څومره خوش قسمت وم د آسیا په غیبر کې پریوتم
وصل محسوس نه شو انتها ته هجر ورسید
ګرد غوندې د هجر د بریښنا په غیبر کې پریوتم



«ستا د ليمو غوندې خبرې کوم»

دجنگيالو غوندې خبرې کوم
غوږ شه نسيم غوندې په منډه مه ځه
د کشمالو غوندې خبرې کوم
په صراحۍ غاړه مې شونډې ايښې
دپيمانو غوندې خبرې کوم
د ملکوت سندرو غوږ نيولې
ستا دبنگړو غوندې خبرې کوم
ستا دښکلا روايتونه لري
که افسانو غوندې خبرې کوم
نن يې نايه نه نظر ماتې ته ځي
نن سپيلنو غوندې خبرې کوم
ترينه رنگونه غرونه ووري
د خيبرو غوندې خبرې کوم



ژوندی خویې لکه د مړه ښکارې
غروې سترګې خواو ده ښکارې

سرابي حسنه ته خبر يې په دې
چې جل وهليو ته اوبه ښکارې

بلا دې واخلمه د تورو جامو
تور د دنيا نه زما زړه ښکارې

داشنا ژبې زه دې څه وګڼم
کله مرهم کله چاړه ښکارې

وينه مې وڅه شوه د زړه په شيشه
اوس اينه شوه په کې ته ښکارې

په بازاری خندا چې تيرو تلې
سالکه ته راته دغره ښکارې



څوک بتکده ودانوي چا جوماتونه جوړ کړه
دلته څوک نشته داسې خلک چې ئې زړونه جوړ کړه
پل صراط نه د نظرئې ړومبی زه پریوتم
چې پیغلتوب یې د لیمونه جنتونه جوړ کړه
څوک زما په تخیل باندې خزان دیره ؤ
ستا دموسکا دې یو بخري بهارونه جوړ کړه
راشه چې ستورو ته مې ستا د راتلو غبر کړی دی
ګوره هنداري د سپوږمۍ ته یې ځانونه جوړ کړه
نن ئې د حسن لطافت ته په حیرت لاهو شوم
دشونډو سیوري مې په مخ ورته خاپونه جوړ کړه
شیرني سر کې د خودۍ تیشه به نه ټیټوم
خو واریې ګوره که تندي باندې دی غرونه جوړ کړه
د آب وګل حیرت خانه کې ستا د مخ په لټون
ما هم بلا ځلې نیمګړي تصویرونه جوړ کړه

# د فطرت البم

سحر به ګلو غزونې وکړي
لمر به د چم په تندي وځليده
لاهوتي تاج به د زرينو وړانګو
د هر حرم په تندي وځليده



د ژوند نغمې به نڅېدلې په کې
زمونږ په کلي کې به شور جوړ شو
چې د فطرت البم کې نه ؤ موجود
ترې نه به داسې يوانځور جوړ شو



هلته به پيل شوه بې الفاظو ژبه
سترګو به سترګو ته پيغام ورکړ
په الطهور به لمبېده محبت
حيا به هر زلمي ته جام ورکړ

پیغلې به ووتې د فصل په خوا
په نرمو گوتو یې ساگونه کتل
څینو به بل څه، بل څه، فکر کاوه
د چا لپاره یې گلونه کتل



چا به پر بام گلو کې لاس واهه
پرې نگهتونه د لالي وریدل
کله نا کله به په تنگو کوڅو
پاس له اسمانه کشمالي وریدل



سترگو به سترگو سره جنگ کولو
هغه دامن زمانه وه هلته
د نظر میو به رنگونه کرل
د الطهورو میخانه وه هلته

هر مازیگر به د گودر په طرف
یوه د زانو سلسله وه هلته
بازان به لوړو باندي لري ناست ؤ
خودي ځیا به فاصله وه هلته



په پانه، پانه چې یې ډیر ځله لیک ؤ
اوبو به داسې سره ګلونه راوړل
یوه کشتۍ چې له کاغذ جوړه وه
هغې د عطرو بوتلونه راوړل



منګې به لرې ترې اوبو وړي ؤ
دوی به رنګینې خاطرې ویلې
همزولو نجونو به په مینه مینه
په داودي اواز ټپې ویلې

خلاص ؤ مشرانو ته د زړه غوړونه
زمونږ حجرې نه به يونان جوړ شو
د الهامي خبرو نور وريده
له هر سزي به سخندان جوړ شو



د چم زلمو به تنګ تکور جوړ کړ
د بام په سر به سره لمبه بليده
ادم به تار کې سره اورونه کړل
د درخانۍ به لوپټه بليده



اوس هم که لاړ شې هغه وران کلي ته
هوا په هغو لوپټو لګيږي
خو اوس د نجونو په سر نه دي هغه
د مزارونو په جنډو لګيږي

هغه ګودر هم شهید شوی دی اوس
په وینو سور هغه زرین مازیګر
وختونه ځيَ راځي خو هیڅ نه راځي
هغه رومان هغه رنګین مازیګر



د بارودي خامار به څه ووایم
هم يې نغمې هم يې شباب خوړلی
د درخانۍ ادم کیسه پاتې ده
اور د تپو سره رباب خوړلی



اوس مرغلرې نجوني ورکې ښکاري
د ننګرهار په غاړه هار نشته
هغه اسمان دی هغه ځمکه لري
خو همیشه په کې بهار نشته



لا خـــو تر اوســـه د منصـــور په نصـــيب دار پاتی دی
لاس کـــي تسبـــې دي او پـه غـــاړه کـــې زنار د پاتی دی
توبې به مـــري او مـــيکده به بس دامن کـــور وی
چې د تقـــوا په وینو لامـــبي لا بهـــار پاتی دی
په خـــوله کـــه نه وایمـــه ځـــیرې گـــریوان چغـــې وهی
چې د جـــانان او د رقـــیب ترمنځـــه تار پاتې دی
مـــائې بیګاه زلفـــې له مـــخـــه اړولي خـــدایږو
د حـــیـا نورئې لا تراوســـه په رخـــسـار پاتې دی
ســـتـوري مـــجنون د پلوشـــو په ژبه داسې ویـل
ښکلی هغـــه دی چې د مـــینې پر مـــدار پاتې دی
یـو لمن کـــانړي لـري اوس هغـــه جلوې نـه لـري
هغـــه د طور غـــونډې جانان لکه کـــوهسار پاتې دی
نه مـــې دســـتر گـــو اوښکې پاتې نه گلونه نیـــسي
گـــرانې نظرمـــې لکه تش مـــزی د هار پاتې دی



بس د باګرام لارو کوڅو کې موالفت کړی دی
مونږ د غزل لپاره دومره رياضت کړی دی
ستا دنظر ستا د ليمو له کوډو څه ءووايم
ما دې يقين په دې سپيڅليي کرامت کړی دی
اوس د لمبو په جای نماز لاس په نامه ولاړ دی
زړه مې پتنګ شو په څراغ پسې ئې نيت کړی دی
په اور ورين وخت کې مو ستر ګې جنګولي سره
مونږه په شر کې هم دامن حمايت کړی دی
دايې په سر کې ده نن بيا ستا دزلفانو هوا
چې بېړيو کې يو د صحرانه بغاوت کړی دی
پخلا به نه وې، پښتنې وې چې ميلمه به يې شوم
د هغې ستر ګو له ناکامه راته ست کړی دی
سالکه ستا قلم شپيلی دا سرافيل ده منم
خو دې «کاروان[1]» هم په غزل کی قيامت کړی دی

---

۱ - زړه کې ورځي خو په خوله دا اعتراف کله کوي
چې دې کاروان هم په غزل کې قيامت کړی دی
«کاروان»



ګـــرانې زړه باندې دې ووري رقـــيـــبـــان دي
راتـه ســتـــا د غـــزل توري رقـــيـــبـــان دي
د ښـکـلا لمره د کـلـي ســــــرتـه راشـبــــه
د مـــيـنو ســره ســيـوري رقـــيـــبـــان دي
نن د ګـل ورمـــــې پـه غــــور کـــې راتـه وويـل
حــجــابونه خــو کــمـزوري رقـــيـــبـــان دي
نـا اشنـا بـادونـه ســتـــا پـه زلفـــو راغـلـل
زړه مـــې پـانې غـــوندې ښـوري رقـــيـــبـــان دي
درنـه ورې ښـــايست د وړانګـو پـه لاســــونو
دارنه ســپــورمــی اوســتــوري رقـــيـــبـــان دي
پـه ســپــرلي کــې مــې نسکور دنصـيب جـام دی
دا نرګس دې ســتــرګـې ګــوري رقـــيـــبـــان دي





په ورځو شپو کې دی قسم دی په هر لور دی جانان

د لمر رڼا ده او زما د سترګو تور دی جانان

نن مې غزلې دي انګور صبا شراب دي دغه

زه هغه تاک یم چې په رګ، رګ مې خپور دی جانان

چیرته خاموش دی د نرګس سترګو کې خوب وړی دی

چیرته ئې اورم د رباب په تار کې شور دی جانان

د خزان پاڼې ئې زرین مخ په سندرو ستایي

چې پسرلی شي د غوټۍ زړه کې سمسور دی جانان

دا مافقیر ورته د حسن بادشاهي غوښتې وه

چې پرسکه د هر یو زړه باندې انځور دي جانان



هاغلته لرې په صحرا کې يو ښراغ ښکاري
لکه په ګوتو د فطرت کې چې اياغ ښکاري
ګوندې زما د زړه پرهر ته څه جلوه ورسي
مهرباني يې د موسکا په باغ وراغ ښکاري
ورځه د يوې د تورو سترګو دې روښانه اوسه
مونږه ته هم جانانه لار د زړه په داغ ښکاري
په ما اختر کړ ستا د وروځو هلالي تصور
ګراني ميلې مې د سندرو په دماغ ښکاري
روح د بلبل د نګهتونو په کفن کې درومي
په جنازه باندې ئې تور څلي دزاغ ښکاري



یاد به دې وي وخته پیمانه زما په لاس کې وه
ستوري په ورغوي زمانه زما په لاس کې وه
زړه مې ستا کیږدۍ لره دروړې ؤ په موتي کې
ښې پولۍ، پولۍ وې در دانه زما په لاس کې وه
اوس د زړګي ورصنمه څنګه درته لرې کړم
تللې هاغه وخت چې بتخانه زما نه زما په لاس کې وه
پنجه چې ما درکړه بې وعدې وې وارخطاوې ته
راغله ستا په شونډو بهانه زما په لاس کې وه
تاج به د شاهۍ ؤ چې د چا په سرمې کېښودہ
ناست په کې هما ؤ اشیانه زما په لاس کې وه
کرښې د تلې تولې د قاف دوطن لارې وې
ورکه ښاپیرۍ وه افسانه زما په لاس کې وه



شمعې زه درځمه په لمبو مې هر کلی کوه
هو پښتونولي ده په ليمو مې هر کلی کوه
مينه مې د سزا و تال راوړی له ازله ده
خور د سريندې ئې په نغمو مې هر کلی کوه
چا درنه د سرو ګلو کيدې نيک بختې غوښتې دي
راشه مړې راشه په اغزو مې هر کلی کوه
پريده ساقي خير که مې شيخان په کانوولي
تاته چې راځم نو په پيالو مې هر کلی کوه
هار د سپينو ليچو دې زما په غاړه واچوه
شرنګ پسې يې مړ يم په بنګړو مې هر کلی کوه
زيړه زرغونه مې د زړګي منشورنه تاوه ده
د غسې لړ مخې په شغلو مې هر کلی کوه



مونږه ژوندی کړه بیا د مینې فلسفه ملګرې
وخت ته به یاده وي زما او ستا کیسه ملګرې
رون حقیقت د زندګی را ته دروغ ښکاره شي
په تصور کې چې هم شې رانه خفه ملګرې
بس د وجود د دیوالونو نه پناه یوسره
زما او ستا ترمنځه نشته فاصله ملګرې
ستا په رڼو سترګو چې زه ستا له راتلو خبر وم
ما ، ما ته کړی ګوره مخکې لا ډیوه ملګرې
تاسو چې کور او کلی جوړ کړ د باګرام په سیمه
خدای را نزدې دې کړه را ته ښو مره مدینه ملګرې
ته چې کړه شوې په زړو سترګو دې بیا وکتل
څرخ د زمان درسره تاو شو سرچپه ملګرې



چې مې په سترګو کې رانه ستا د نظر ستوري دي
هرڅه مسکي دي هرڅه ښکلي لر او بر ستوري دي

تور اهريمن به دوی په خپله ښکلا وژني په خير
زما ياران لکه ثاقب لکه خنجر ستوري دي

د حسن اوښکې به بدرنګه نړۍ ونړوي
د مدارونو نه وتلي سر په سر ستوري دي

خپل مستقبل او خپل منزل تقدير ته څکه سپارو
چې خپل اسمان کې له مونږ ورک د خيرو شر ستوري دي

دې پورته لمر د فطرت د غه سفيد پوشه رهبر
د قدر غيره کې وژلي هم اکثر ستوري دي

د کلي خلک که خبر دي نجوميان به وي نو
ګني په حال باندې زمونږه خو خبر ستوري دي

# رياضت

ســتــا اننگي مــې په چا نه دي پيــرزو
دوی د بهـــار په قـــدر نه پوهيــږي
ســتـــا د خــبــرو ترنم نه لوگی
کــوڼ د ســتــار په قـدر نه پوهيــږي



دلتــه ځــو ک قــدر د رڼا نه کــوي
دلتــه په زړونو کــې تيــاره خــوره ده
دې د خـــزان بچــو ته مـــه ورکـــوه
هغــه مـــسکا چې دې په خــوله خــوره ده

ښکلې حوره په دوزخ کې اوسي
په اور دې وسوزي مهینه سینه
دا خو انصاف نه دی چې کاني زړونه
کوي خوبونه په وریښمینه سینه



پریږده دنیا چې ګډې وډې وایي
راځه، راځه زه دې سندرې اورم
ته یې چې تل کوې دستورو سره
د زړه په غوږو ستا خبرې اورم



دوباره به یو په میکده کې د عشق
د خدای په نوم باندې به جام پورته کړو
چپ، چپ د مچو کې به رنګ کړو غزل
مستانو ابه له باګرام پورته کړو

## په کربلا کې توکېدلې ګل :

جینې د خدای او د رسول ومنه
په دې خبرو باندې تیره کیږده
خپلې نازکې شونډې څه له سیزې
بس په سندرو باندې تیره کیږده



څه ته په ساندو کې سندرې لړې
زما د زړه تارونه زور نه لري
د رخو د ژوند رباب به مات کړې زما
ته به خبره شې چې شور نه لري



ما ته به نه وائې چې اور شو وطن
د ګل په پاڼو افسانې سوې دې
ما ته به نه وائې چې مړه شو نرګس
هغه د سترګو میخانې سوې دې

ځـه کــاينا تو نه دبانـدې وځــو
چې دانســان دخــيال څپـه نه ورځي
يو داسې ســتـوري کــې دنور به اوســو
چې هيڅ ادم تـه يې نـامـــه نـه ورځي



ســتـا پـه وجـود کــې لاهوتي رڼا ده
راشـه چې زه يې عـبـادت وکــړمــه
تـه دې تپــو تـه رنګ دمــيني ورکــړه
زه بـه غـــزل تـه رياضت وکــړمــه





ستر گو ته راشي بيرته سترنه شي
ستا تصور هم د خوب څپه شي
لکه هوسۍ به بيا رانه رم کا
کاش چې وجود مې بيا آينه شي
نن يې وجود وي صبا ته نه وي
هره وعده دې دوخت حصه شي
ملګري داسې رانه په څنګ ځي
لکه په دښت ګې څوک چاسره شي
دا کوم منزل دی اشنا د مينې
چې حقايق هم تول واهمه شي
ګلې چې اوس هم زما په ياد شې
روح مې وحشي شي ورمه ورمه شي
هجرت د حسن په خپله عشق دي
نوم يې بدل شي زړه کې ميشته شي
ته حقيقت يې بيان دې وهم
ښه نظاره وي خو فلسفه شي



د وسـوسـو غـوندې راغلي دي بدرنګه ديوان
د اسـيـا زړه کـې يې نازکـه ښکلا ولوټله
پيغلې اوچت کړه د ارمان په وينو سره لاسونه
د عـرش پر لاره يې بارودو دعـا ولوټله
اوس د فطرت په قـوانينو باندې شک کـومـه
نن چې اغـزيو د ګلونو حـيـا ولوټله
وخت د خزان د بوالهوس بچي په نوم پيـژنم
د غـوټۍ شونډو کې يې پيغله موسکا ولوټله
پورته يې غشی د طوطي له سينې پورې وويست
لاندې يې هم د شنـوبـنـګـړيـو نوا ولـوټـلـه



د چا د شــوندو تصــور د خــيــال له طوره ښکاري

هره غــوټۍ د پســرلي نن راته حــوره ښکاري

ښکلا کــه نه وای تصــور د بدرنگۍ به نه وو

دا غرونه، غرونه سيوري تول د چاله نوره ښکاري

په خيال مين يم دخيال رنگ ونور زما هستي ده

څــومــره ســاده ده په يوه جلوه مــغــروره ښکاري

قاتل مې گوره اوس د اوښکو کرښې نه شي ليدی

د يار په گل، گل اننگو کــې ورته توره ښکاري

د نرگسي سترگو افسون دی اوکه څه کيسه ده

هره ښکلا نن د فطرت راته رنځــوره ښکاري

د «کسي اور[1]» دی د مغرب د ځراغونونه ده
دغه رڼا چې اوس زما د لاشعوره ښکاري
چې په ړندو حواسو گوري د ښایست رنگونه
د نړۍ هره فلسفه راته معذوره ښکاري
لرمخې ستا په مخ کې دومره رنگیني خونه وه
داټول رنگونه مې د خپل زړه له منشوره ښکاري

---

۱ - بیت نیکه به د کسي په غره کې گرځیده او خپل مناجات به یې وایه چې یوه برخه یې داسې ده «دلته لږ زمونږ اوربل دی - ووړ کورگی دی ووړ بورجل دی» د کسي اور نه مراد همدغه اور دی



زړه کـــې مـــې خـــيـــالونه د پرهر په ســـر
پيـــغلې دي راغـــونډې د گـــودر په ســـر
ســـيـــوري مـــې يـاري راســـره نه کـــوي
راغي اخـــر ســـتـــا د هجـــر لمر په ســـر
ته راتـه مـــسکې شـــوې زه پخـــلا شـــومـــه
پاتې مـــوپښتـــو شـــوه شکر ســـر په ســـر
ســـتـــا رنگين يادونه په روح ســـپـــارمـــه
پـاتې راتـه نـه دې خـــه بـاور پـه ســـر
خـــپـلـه بـه زاهـد د شـــونډو تـږی شـي
خـــوري دې قـــســـمـــونه د کـــوثر په ســـر
ســـتـــا د مخ او زلفـــو مـــعـــجـزی نه ځـــار
ســـيـــوري ســـواره شـــوي دي د نمر په ســـر
مـــات مـی کـړ غـــرور خـــو زه مـــغـــرور نه شـــوم
لاريم غـــــزيدلې يـم د غـــــر پـه ســـــر



منم چې ډیر لري خطر جنګونه

امن ته ښه دي د نظر جنګونه

سترګې د چادې منځګړې نه شي

چې سترګې وکړي سر په سر جنګونه

د خوږ وطن شیرینه خود پاتې ده

چې ځای په ځای دي لکه غر جنګونه

خپلو کې ښه شوه رقیبان پریوتل

لکه زرې کوي په لمر جنګونه

هلته به ومنم چې امن راغی

که پیغلې وکړي په ګودر جنګونه



نن په لار د میخانې غوندې تیریږي

دا لحظه د پیمانې غوندې تیریږي

په هوا کې بې ښکالو د قدمونو

د بنګړو د ترانې غوندې تیریږي

نه یې نوم نه حقیقت راته څرګند شو

یو بې نومې افسانې غوندې تیریږي

وړي ولجه د زړه کابل نه مې خوبونه

د روانې زمانې غوندې تیریږي

زه د اوښکو د پردې نه ورته ګورم

هغه ښکلې دردانې غوندې تیریږي



ساقي زلفو باندې کړه مې پریشان خیال

میکده کې را سره دی د ایمان خیال

دا هغه ده چې لمده ګودر نه راغله

که په مېو لمبیدلی دیزدان خیال

په جمال کې دې مرموز غوندې جلال دی

غابښ په ګوته در ته ودریده حیران خیال

لا یې ماته ګوره تنده د ذوق نه ده

لا خو ورکې پسې ګرځي د انسان خیال

جوړ دمیني نشه ځي زما د سره

بوږ نوي مې د راتلونکي امتحان خیال

د زمرې غوندې راګوره پسرلی دی

چیرته زړه ته مې رانه شي د رومان خیال



شوق د سراب زما نه پاتې نه شو

ذوق د شباب زما نه پاتې نه شو

اوس مې خپل ځان راته حجاب لیده شي

پرتا حجاب زما نه پاتې نه شو

دلته د زلفو خوشبویي لتوم

هلته ګلاب زما نه پاتې نه شو

غمونه لري نه بدرنګ لیده شو

ښه ده چې تاب زما نه پاتې نه شو

ورځ چې تیریږي نو جانان بدلوم

دا انقلاب زما نه پاتې نه شو

ښکاري چې ته به مې په زړه کې اوسې

ګني محراب زما نه پاتې نه شو

مه وایه دا چې اوس د نجونو میره
ځې د همزولو په خازو پریوزي
چې آینې نه ئې حیا کوله
اوس د ابلیس په دروازو پریوزي



جینۍ د خدای او د رسول ومنه
په دې خبرو باندې تیره کیږده
خپلې نازکې شونډې څه له سیزې
بس په سبندرو باندې تیره کیږده



ته جادوګره یې منم شاعرې
ته په الفاظو کې رنګونه کړې
څومره په ناز او په انداز باندې
حاسو زړونو کې اوروونه کړې



اوس چې جوړې د مستو پيغلو په گودر نه راځي
راځي وختونه زه منم خو مازيگر نه راځي
د گلو رنگ دې د صبا نسيمه لولپه کړه
چې په اوږو دې د ظالم کور ته شرر نه راځي
ما د بنگړو او د کمځو نه فسلفه زده کړې
که دلته عامه شوه نو بيا به شور و شر نه راځي
د کلي خلک وايي مونږ د ورځې ستوري وينو
په خپل وجود شکي يم ما ته يې نظر نه راځي
منزل د هغو داسې ورک دی لکه ته زمانه
چې کوم غمونه اشنا نيغ زما په سر نه راځي
چې د باگرام د غزل نه منې جلال ملگرو
يا خو ړانده راځي يا دا چې په خبر نه راځي

## د بودا د یو مات شوي بت د سر په لیدو

یه د بودا د بدن ستري کوپړۍ
تاسره څومره محبت شوی دی
دا ولې بیله یې له نوري تنې
چې دا په څه درنه نفرت شوی دی



لږې یې بیرته راستنې غوندې کړه
ستا په تندي کې زماني ښکاري
څه «نیروانا» او د ښایست حقیقت
څه بوږنوونکې افساني ښکاري



نن راته وکړه بس د حال په ژبه
ته د خپل روح او د رڼا خبرې
هغه ملنگ شهزاده څهؤ د هند
د هغه پیر هغه بودا خبرې

هغه کې څه وچې دې نورو خلکو
د هغه حسن ته نمود ورکړ
چې زمانې درسره مینه وکړه
تاته یې داسې یو وجود درکړ



وایي چې ډیر درته مغرورو مجنونو
په تورو خاورو کې تندي ایښي دي
د ننګرهار یو هنرمند لیوني
درته په سترګو کې غمي ایښي دي



هغه مغرور وګړي څه نومیدل
چې بتکده هم یې حرم مات کړ
د نفرتونو بدرنګیو په زور
داسیا زړه کې یې صنم مات کړ



ورک شوم ستا ضمیر نه پاتې شوی یم
دیدیمه تصویر نه پاتې شوی یم
ویې لیدم، هیر یې کړمه ختم شوم
خوب یمه تعبیر نه پاتې شوی یم
ته لکه وږمه په هوا والوتې
رنګ غوندې بهیر نه پاتې شوی یم
لارې رانه مخ په بله واړوي
زه جوړ د تقدیر نه پاتې شوی یم
اوښکو مې تاویز د نظر وویڅه
نور نو د تاثیر نه پاتې شوی یم
وخت لکه چنګیز او زه د سولې خوب
ځکه یې تدبیر نه پاتې شوی یم



ساتمه دي جانان اوس د دين غوندې په زړه
د دين غوندې په زړه کې د يقين غوندې په زړه کې

يو ستا د شونډو خيال دی زهرجنه زمانه کې
چې خورم يې کله کله د ګبين غوندې په زړه کې

د مينې سليمان يمه حلقې دي ستا د زلفو
خالونه پرې د پاسه د نګين غوندې په زړه کې

خلوت کې مې جلوت دی د عالم د سترګو لرې
يو حسن راسره دی همنشين غوندې په زړه کې

د خپله ځانه ځله په چا غشي را وريږي
ستا سترګو مې نيولی دی کمين غوندې په زړه کې

چې وايم خدای دې راکړه نو حيا دې ژبه واخلي
رښتيا وايه چې وايې ته امين غوندې په زړه کې

د مخ زلفو اعجاز دی چې خيالونه راتوکيږي
زرين غوندې په زړه کې عنبرين غوندې په زړه کې



زما مستي که یو څپه وه لاړه تیره شوله

ستا د ښکلا هم تماشه وه لاړه تیره شوله

زما د زړه د شیشي د نګ برجونه ریز مریز شو

ښکلي خندا دي زلزله وه لاړه تیره شوله

د راتلو لار کي مي ژړل لکه د وریځي ورته

لیلی د برق په آس سوره وه لاړه تیره شوله

ستا دا کچه ځواني به اوس اشنا په څه پخیږي

ځواني زما یوه لمبه وه لاړه تیره شوله

د امیدونو ماڼۍ څه ء له جوړوي زړګیه

هغه د بل ځای قافله وه لاړه تیره شوله

تر لمر خاته يو لاس په نام بل ؤ په جام د ساقي
خدايږو بيگاه د قدر شپه وه لاړه تيره شوله

پيغلو کې چيرته وې سرحد باندې زما د شونډو
يوه سلگۍ تاله ستنه وه لاړه تيره شوله

په هره ورځ مې نوې رنگ نوې انداز کې ليده
ياري دې نه وه زمانه وه لاړه تيره شوله

په ارام پروت يم راغلې اوس ژاړې خوريږې په ما
د ځنکدن سخته لمحه وه لاړه تيره شوله

نه وه ډولۍ دغه سرخې وه د سالک د وينې
دا يې د مينې جنازه وه لاړه تيره شوله





لاس نه بنگړي اونه د غاړې نه يې هار تاويږي
د گل وجود نه اوس دُره لکه د مار تاويږي
سرې لوپټې په گودر پاتې دي د چم دجونو
حسن خورې لمبې د کلی په چنار تاويږي
همدمه ښه وايې خو تگ له هغې نه دی ممکن
زما د يار کلي ته هره يوه لار تاويږي
ستا تر راتلو به مې زړه چاود وي په دې ښه پوهيږم
دا بېړيوکی اوس په گرداب د انتظار تاويږي
ځم د منصور په پل روان يمه د دار په طمع
نه مې تسبې شته نه مې غاړې نه زنار تاويږي
يوائې ستا ښايست خونه دی چې جوړ کړی مې دی
ټول کاينات مې د ککيو په مدار تاويږي



هغه ماشومې سترګې ستا اوس معلمانې ښکاري
نن دې د زړه د مــقــاصــدو ترجــمــانې ښکاري
دابه نـصـيب ؤ چې ښــارونه مــوکنډرې دي اوس
خو پردۍ دښتې لا په مونږ باندې وډانې ښکاري
دغــه چې مــونږ ورسره درومــو دا د ژونـد قــافلې
له کـومـه راغلې کـوم طرف باندې روانـې ښکاري
دا ســرابونه دي چې ورشـــې هيڅ وجــود نه لري
څــپـې د حــسن بس د لرې مــهــربانې ښکاري
نيــوی يې نه شم د سندرو ښــا پيــرۍ وينمــه
لکه شــيــبې د زمــانې درومــې روانې ښکاري



ښا پیری! په خوب دې وینمه د یو، تاوړي
څوک چنګیز رانه کتاب داوستا وړي
د نفرت باد د تیارو له غرونو راغی
د ژړګي فانوس مې مات ترینه رڼا وړي
ما شراب د نرګسي سترګو نوش کړي
د خوشبو غونډې بې هوشه مې هواوړي
هوسۍ سترګې دې کوډ ګرې د بنګال دي
التفات سره مې خود د زړه صحرا وړي
زړه مې غرشو ته سپوږمۍ د څوارلسمې
د غزل پیغلې دې بوتې د سوما وړي
ډیوه مخې پښتنې خال به دې ستایم
که ایرې مې اباسین او په ګنګا وړي
ملالۍ ده مقدسه ده زینب ده
په تپه کې هنګامه د کربلا وړي
فاطمي سیرت لري نشاره[1] یاره
په زړګي کې محبت د مصطفا وړي

[1] زما شاعر اشنا نور الحبیب نثار

ستا ارادې د تاترې نه لوړې
ستا به لاسونو ته اسمان راشي
خودا زما په زړګي نه ځايېږي
چې په ښايست دې امتحان راشي



مونږ غريبان يو مونږه هيڅ نه لرو
ته د وطن خوبونه څه له وينې
په کربلا کې تږو کيدلی ګل ئې
بيا د ګلشن خوبونه څه له وينې



جينۍ د خدای او د رسول ومنه
په ءدې خبرو باندې تيره کيږده
خپلې نازکې شونډې څه له سيزې
بس په سندرو باندې تيره کيږده



دا رنګ خو يو غبار دی د هر ګل په آينه کې
ښکلا د سپرلي ګوره د بلبل په آينه کې
زاهده د حرم حير تکده دې مبارک شه
خپل ورک اشنا مې وموندہ دمل په آينه کې
غبار يې د زوال لا په رخسار پريوتی نه دی
چې ګوری د خپل حسن تکامل په آينه کې
شيشه زما دملک خو د کوترو وينو سره کړه
اوس ځالې د حيرت دې د کابل په آينه کې
په سترګو کې تصوير مې ګوره ځنګه وارخطا کړې
جرأت خو به منې د تقابل په آينه کې



خپل نظر دې کړ بد نام په میکده
رانه وغورځیده جام په میکده
خدای بروړ دیار په چم کې دتګ نه دی
چا چې سم وا خسته ګام په میکده کې
زندګي یوه مرموزه معما وه
ترینه وواته ابهام په میکده کې
خیر ساقي که بلا زړونه ریز مریز کړل
د پیالو نه وي دوام په میکده کې
چې تسبو او زنارونو قابو نه کړل
ګوره څنګه دي اوس رام په میکده کې
مدرسه نه ده بندیز دی په لفظونو
په سرو سترګو شي سلام په میکده کې
ساقي ستا زلفې لیمه ستا بې په دروغو
چا چې تیر نه کړ ماښام په میکده کې



نه حقیقت او نه مجاز غواړم
د خپل وجود درنه جواز غواړم
ولې مې ذوق غوندې په منډه درومي ؟
زه د فطرت د زړګي راز غواړم
تېږې به خپل ګودر نه ټولې کړمه
تش د داؤد غوندې اواز غواړم
انجام به راشي مرحله ده د لار
بس حافظه د خپل اغاز غواړم
لفظونه ګونګ شو ما چې ته ستايلې
نور مې د روح له تاره ساز غواړم

# د ژوندانه راز

ما د فطرت کتاب کې راز د ژوندانه پیدا کړ
چې نور څه نشته امتحان مې د وعدې اخلې
ما هیره کړې ده د عقل په تیارو کې هغه
تلاش په ما، خو لرې مخ نه به پردې اخلې



د مخ شغلې دې چې خورې شي دوه خبرې لري
یا به پوره کړم وعده یا به لمبه، لمبه شم
«طور» مې را یاد شو یو صورت شو خامخا به سوزم
خو بې وعدې مې نه کړې پریږده چې ایره ایره شم

خیر که زه نه یمه جانانه خو یقین لرمه
چې به همدا زما ایره د وعدې پت وپالي
دغه رانجه به دښکلا ستر گو ته ورسیږي
په ډیر خلوص به مې اقرار د محبت وپالي



بیا به نیلی د نظر زین کړم د سفر لپاره
لکه دبرق غوندې به تیز د مین زړه ته لاړ شم
وفا وفا به یمه نور به بیازه هیڅ نه لرم
پاک او سپیځلی به جانانه ستا کاله ته لاړ شم



بیا به نو حسن وي زما د مینې ډکه لیلی
زه به لیلی ته ډک د حسن نه مجنون اوسمه
ما به وعده وي پوره کړې بې وعدې به نه یم
په جار به وایم چې ابد ته به پښتون اوسمه



دسرو گلونو دبلبل د ترانې بريدونه
دلته بيليږي د مسجد او ميخانې بريدونه
ستا د ښکلا يو لامحدود تکی په ځان کې لري
ځکه مې نشته د ژوندن د افسانې بريدونه
روايتي سلام دوه درې د خپل مطلب خبرې
دومره راغونډ دي اوس زمونږ د يارانې بريدونه
ما به د ځان سره له دې دنيا نه لرې بوځي
که ميو مات کړل د دې تنګې پيمانې بريدونه
جوړ پيغلتوب سره د يريږي استعمار د حسن
چې ورغ تر ورځي لويوی د بهانې بريدونه
زه له هغې نه ستا د مخ په رڼا پاک مريمه
ګرانې چې نه ؤ لا د ځای او زمانې بريدونه
يو خليلي تصور شته په کې بل بت نه منې
که څو پراخه دي د زړه د بتخانې بريدونه



دابنـــــو دې تـور لښکـر راتـه قـطار کـــړ
کـــه يې صف د جنازې زمـــا تيـــار کـــړ
خـــوشـبـــو واچاوه طلاق ناوې دشـــپې تـه
چې ســـحـــر ريبـــار د تا د زلفـــو يار کـــړ
زمـــــا زړه له ډيره رشکـه اناالحق کــــــړ
چې ســـرو گلو تـه دې جـــوړ د زلفـــو دار کـــړ
نســـيم پورتـه ســـپـين ټيکرى کـړ د گلرخــې
وا وريـن ژمى يې مـــوسم د نـوبهـــار کـــړ
انځـــور گـــرد عـــشق مـــې وران گـــوگل پـه وينو
ســـتـــا يادونو لره بيـــرتـه زرنگار کـــړ
خـــيـــال دې تللى د ســـالک د ذهـنه نه شي
د غـــزل پـه ځنځـــيـــرونو يې حـــصـــار کـــړ



سکون به نه وي هم به کلی د رنگ وبایلمه
د مستې ځانګې که خوشبو غونډې ځنګ وبایلمه
سخته ګرمی کې کیفیت ستا د خولو خپلوم
په خرابات کې چې ساړه شي لونګ وبایلمه
ستا خونړي بانه یې هم په ننګه ودریدل
جانانه اوس به د حالاتو نه جنګ وبایلمه
غمونه ګټم د قمار دولت وفانه لري
زه به یې هم چیرته دانو کې دبنګ وبایلمه
که دبنګړو غوندې کوم ملکوتي خبري
خو ستا په لیچو کې ناڅا په اهنګ وبایلمه



ستا چې دلیمونه خمار و ځاځي
رنګ په خروارو له بهار وځاځي
عشقه ته د ورځې شمعه بله کړې
اوښکې یې زما په مزار وځاځي
مونږه د ساقي په پام کې نه راځو
ډیر که د جامونو نه وار وځاځي
نن یې د جونګړې رڼا تته ده
ستوري دې زمونږه په ښار و ځاځي
خدایه پښتنه چې چاته نیسی لاس
څنګه یې بنګړیو نه عار و ځاځي
جوړه شي ترې مسته د نغمې څپه
غم زما د زړه وي په تار و ځاځي

# ازلي مینه

لا زمـــا نه د خـــدای په خـــیال کـــې نه وه
مـــا سندریز شـــان پیـــغلتـــوب کـــې لیـــدې
زه چې اوده وم د عـــــدم غـــــیـــــره کـــې
د هغـــې شـــپـــې نه مـــې په خـــوب کـــې لیـــدې



مـــا به لیـــدل چې کـــاینات جـــوړیدل
تانه یې ځـــاځکی د ســـــرور ورکـــــړ
چې دې نقـــاب له مـــخـــه لرې کـــړیس
زړو لمـرونـــو تـــه دې نـــور ورکـــــــړ



په رنـگـینـه شـــــــرارتي نړۍ کـــې
مـــا دې په هره خـــوا لتـــون وکـــړ
پیـــدا مـــې نه کـــړې خـــدایزده ولې داتـه
مـــا خـــو په ټولو لارو یـون وکــــړ

د پرهر زړه رڼا ته ژوند تیــــــــرود
دارنګینه نړۍ زمــــــــونږه نه ده
په ماشوم زړه باندې دې زور تیر کړه
دغه ښایسته ګوډۍ زمــونږه نه ده



د رومي لالونه د خــــــزان لونو ته
ته همیشه هلته بهار غواړې
د خپلو اوښکو د غـــــمـــو په بدل
د ننګرهار لپــــار هار غـــواړې



ستا په رڼا ستا په ښکلا مې قسم
د هندوکش او د پامیــــر تاج ئې
ته په سپین غر کې د بزرګې څوکې
د تاترې او د بنیـــر تاج ئې

ستا په رښا چې ستا په طمع باندې

ما د يرې توري زمانې ليدلې

د ښا پيرو وطن ته درغلمه

ما هغه تېولې افسانې ليدلې



ما دې د حسن د ليدلو په نيت

د يونان ښکلې خدايان تېول وليدل

ستا د انځور د ښکلولو په نيت

په تلوسه مې بتان تېول وليدل



ښه ده، ته راغلې خو زړګی مې رېږدي

چې ازلي مينه دې هيره نه وي

چې د عدم کلي کې ؤ درسره

د خپل لالي مينه دې هيره نه وي



زه دې دا لـه رنـګـه هـست يـمـــــــه
ځم لـکـه نـګـهت پـه لاره مــــست يـمــه
زه د ځــان احـســاس جـانـان نه لرې کــړم
خــپله بس علت د خـــپل شکست يمــه
مـــاته پام پـه نوو ســتــرګـــو مــه ګـــوره
کـلـک پـه نـظـريـه لا د الــست يـمــــه
مــــينه مــــې ملګرې مـــصنوعي نه ده
زه خـــو پـه فطرت حـــسن پرست يـمــه
ګـرانـې ستــا دې مـيـنـې سمندر کـې زهٔ
خــوښ لکه مـــاهي بې پـاو دست يمـــه

# رنځور جانان ته !

تېپه ورکېږي د ملالې نه علم پرېوزي

هو! د رنځور جانان له ګوتو مې قلم پرېوزي

د لمر د وړانګو په لاس تاوه ده دورېځو پټې

بیرته په پاڼو مرغلرې د شبنم پرېوزي

درد خو لاڅه ماته یې د غه بوج هم ملامـا توي

چې په رانه بدن یې سیوری د مرهم پرېوزي

څنګه محشر نه شي دنیا په بله نه شي چپه

له تورو سترګو نه یې ستوري ذم په دم پرېوزي

رنځوره ګله د نګهت دسمال کې لیږم دعا

اوس به نسیم لکه د خدای د شوندو دم پرېوزي



د روح په باغ مې را وريږي جانان
په هر يو ستوري کې موسيږي جانان
حسن يې بوج شو په نازکه ځواني
د هر يو ناز سره کږيږي جانان
چېرته په رنګ کې راته وموسيږي
چېرته له تاره را وريږي جانان
لکه د ميومې د زړه په خم کې
ورځ چې تيريږي ښايسته کيږي جانان
که شرق و غرب ته درومي بيرته راځي
د خيال په تال کې مې زنګيږي جانان
ټول کاينات راته ځپه شي د نور
چې مې په سترګو کې بليږي جانان
هلته نوروز دی په صحرا ګلونه
زما په زړه کې راټوکيږی جانان

# درنګ اونور مجموعه

روح مې د وړانګو په تالونو زانګي
په نالیدلي مخ کې نور ښکاري
ما خوله هیچا اوریدلي نه وو
چې په ذره کې کوه طور ښکاري

***

چې ښا پیرۍ د رنګ ونور مجموعه
مسته زما د زړه په قاف راشي
د پیمانو د ګردشونو په څیر
ټول کاینات مې په طواف راشي

***

مسته حیا شي د شفق غیره کې
یوه رڼا مې په نظر راشي
لکه د ګلو نمایش لره چې
د جنتونو نه سحر راشي

چې ښا پيرۍ په چم ګاونډ تيره شي
شړنګ د کړو نه يې سندرې ووري
يوه ادايې شي باران د غزل
په ټول باګرام ترلرې لرې ووري

***

مېړ آينه د زړه مې پرووهي
په کې څه نوې افسانه پيدا کړي
ژوندی انځور شي د ازل د ورځې
دغه هنداره حافظه پيدا کړي

***

داهسې نه وې ما بلا ليدلې
د ستر ادم او دحوا لورګانې
جلوه نظر يې طوفانې غوندې شي
لاړې شي مړې شي د رڼا لورګانې

د روح تارونه مې وهي په بنو
راته په رګ، رګ کې سندرې شيندي
زما د زړه د ننګرهار په سيمه
باران باران شي مرغلرې شيندي

***

دا د ښايست او د رڼا ملکه
شکر زما په زمانه راغلې
اې د عدم د شپونه کټ ته زما
لکه رنګينه افسانه راغلې





د باغ وبڼ گـــلان به تړول وګـــڼي نه ګلونـه
چا چې ليـــدلي پســـرلي کـــې د راغـــه ګلونـه

زمـــا دخـــيـــال په توره شـــپـــه کـــې د رڼا ملکه
لکـه ډيوه په لاس کـــې ونيـــســـي رانه ګلونـه

ســـتـــا دمـــوسکا د تيغ مـــزه نو خـــضـــر څـــه ليـــدلی
په ځنکدن کـــې هم قـــســـم دی مـــوســـيـــده ګلونـه

خـــدايه! دا ولې پرې وريږي د سکروټو شـــيـــبـــې
پردې کـــوڅـــو خـــوله اســـمـــانه وريده ګلونـه

زمـــا جـــلال به ســـتـــا جـــمـــال ته زندګي وربخښي
لکه ســـمـــســـور چې په سينه کـې شي دغـــره ګلونـه

ته چې ســـپـــرلي زمـــا نه غـــواړې د خزان ورځـــو کـې
درته به راوړمـــه په ســـتـــرګـــو په لېـــمـــه ګلونـه



قاتلې څنګه به مې خوږ خنجر له یاده وځي
چې رانه ستا هغه رومبی نظر له یاده وځي

د زلفو سیوري ته مې ډوب کړه د بنګړو نغمه کې
چې لږ ساعت ته مې دا شورو شر له یاده وځي

د وصل شپه هم ترینه هیره ده مانه پیژني
لکه د شپې لیدلی خوب سحر له یاده وځي

ځکه خوزه ریبار د یار تر دره نه ورلیږم
که ورته مخ شي د هغه خبر له یاده وځي

څنګه به واخلي یوسفي حسن نه ښکلی جانان
څوک یې چې ګوري ورنه زور وزر له یاده وځي

ځنځیر یې نه کړم چې اوده شم زړه ته راشي هغه
اکثره خلاص وي مانه دغه ور له یاده وځي

## «کاروان ته»[1]

بیا دې دشمس په مخ کې څه لیدلي
چې مولانا غوندې خبرې کوي
ګوره یو کیږي پرې همه کاینات
رڼا، رڼا غوندې خبرې کوي



د سقراط او د منصور قاتلان
کله په سترګو کې رنګونه لري
یو دوه حلقې د دار دي تورې، تورې
یوه دوه د زهرو کنډولونه لري

---

۱- د کاروان صاحب دیوه غزل بیت دی چې!

پام کوه د کفر په فتوي مې چې ونه نمانځې
زه خو میخانه خدای ږو سکه د جومات خور ګڼم

ځنې خلکو چې دا بیت واورېده نو کاروان صاحب یې په هغه څه ونمانځه چې هغه یې په لومړي نیم بیتی کې یادونه کړې ده. دا نظم د همدې تاثر لاندې لیکل شوی دي.

جینی د خدای او د رسول ومنه
په ءدي خبرو باندې تیره کیږده
خپلې نازکې شونډې څه له سیزې
بس په سندرو باندې تیره کیږده



بهار په خوب وینمه وبه خاندې
رنګین ګومان دی خو یقین ورک دی
سوال مې یوائځې ځي په بره طرف
د پرښتو ځنې امین ورک دی



لاس مې تر عرشه پورې نه رسیږي
چې زه اجرونه ستا د ویر را وړم
جنتي خوب چې په دوزخ کې وینې
هغې ته ښکلې څه تعبیر راوړم

د بايزيدله خانقاه ناخبر

په دې خبرو باندې نه پوهيږي

تا د طوبى له ونې جوړ کړ رباب

څوک دې سندرو باندې نه پوهيږي



اوس د خوشحال سترګې د چا خونه دي

چې په هر څيز کې دې جانان ويني

په پيدايي کې چې ترې ورک غوندې شي

حسن دې تا غوندې عريان ويني



دوى د رحمان په سترګو شک کوي جوړ

چې په حرم او دير يې يو شان ليدل

همدغه نور ؤ پرکيده هره خوا

نور نو عدم او غيريې يو شان ليدل

ستر د خیبر ستر گور هم نه وینم
چې د کعبې سره یې تار د رلوده
تسبې په لاس او په زړګي کې صنم
د بتخانې سره یې تار د رلوده



دا غریبان د دې نه نه ء دي خبر
چې ستر شایست لره حدونه نه وي
حد خو کړی ده داجل د ځنځیر
ازاد ژوندون ته ځنځیرونه نه وی



د خیال او فکر له رڼا محرومان
چې سپین په سپین او تور په تور نه ګڼي
ګرد د مادې یې روح نه وړی نظر
دوی میخانه د جومات خور نه ګڼي



ستا له خبرو مې الهام واخست
ما د سندرو ښار ته ګام واخست
په تغافل یې زه بې واکه نه شوم
نن مې ساقي نه انتقام واخست
کوه همداسې په لیمو خبرې
ایله دې رنګ زما دقام واخست
کوي هوا لکه غزل نازونه
چې بیا یې ښه د چاله بام واخست
ښه ده چې زړه مې بې صنمه نه شو
د غه حرم ته خو مې رام واخست
وخته پخوا غوندې بې وسه نه یم
په میکده کې مې ماښام واخست



نن دې په ژبه باندې راغله خطا ډېره ښه وه
د زړه خبره وه ملګرې بلا ډېره ښه وه
نور د صفاتو له بریدونو دراوښتې یمه
اوس رانه څه پوښتې چې کومه ادا ډېره ښه وه
هغه بې وخته به چې ستا تصور ویښ شو په کې
د زړه پر بام مې د جذباتو د رزا ډېره ښه وه
زه به د حورې غېږ کې تنګ شمه فریاد به وکړم
هلته خو تنده وه لټون ؤ دنیا ډېره ښه وه
دا هم مقام دې چې لیلی رانه پوښتنه کوي
د هجر شپه وه خو زه وایم په ما ډېره ښه وه
مست یې شباب، خیال یې شراب، غږ یې رباب غوندې ؤ
جونې خو ډېرې مالیدلې دي، دا ډېره ښه وه
څوک به بوډی وه خو زما د لاشعور ناوې وه
د خر خیبر نه راختلې نوا ډېره ښه وه

# د نارنج گلونه

هلته ستوروکې میشته یې
په سپوږمۍ کې راته ښکارې
کله زه هم مولانا شم
په شپیلۍ کې راته ښکارې



کله کله درته گورم
په گلاب کې راته خاندې
سرینده کې په ژړا یې
په رباب کې راته خاندې



کاینات به سپیلنی کړم
ستا د خیال یو زرې ته
سل کشمیره به لوگي کړم
هغه ستا مومندرې ته

ته د هسک له بامه پورته
د نورونو مناره یې
د جنت د غرولړۍ کې
د رنګونو تاتره یې



حسن روغ لکه د خدای دی
بس په غیبو می ایمان دی
سندریزي سیپاري دي
پروت په مخکې مي قران دی



زه قسمستا په رښا خورم
په ازل کې مالیدلي
هو بهو لکه همداسې
چې غزل کې مالیدلي

هغه پاس ساقي گواه دی
پيماني نه مې غوښتلې
له عدم نه ترڅې دمه
زماني نه مې غوښتلې



فلسفې زمانه هيرې
د يونان بتان مې مات کړل
ته مې زړه کې را پيدا شوې
د جهان بتان مې مات کړل



ته په شونډو مې مسکا يې
په پرهار کې راته خاندې
د نارنج گلونه راکړې
ننگرهار کې راته خاندې

تول به نور زمانه اخلي
د خبرو په جهان کې
ستا رنا زه لکه لمر کړم
د سندرو په جهان کې

## وصیت

زه شهید مازیګری یم ما د پیغلو په لاسونو
د سندرو په کفن کې د ګودر په شور کې خښ کړئ





ځار دې د ليمو نه زه خو زړه ترينه روان كړمه
بيرته يې دا ښكلي ماشومان لمنه ونيسي
ډير خوبان به يوسي په لمن داغونه نن صبا
غواړي زليخا چې د جانان لمنه ونيسي
زه مې د خپل چم د حسن څه نو درته ووايم
ګل غوندې ښايسته وي د طوفان لمنه ونيسي
ګوره چې پرې ځنګه د تيارو اسونه ګرځوي
څومره كه شفق ددې اسمان لمنه ونيسي
ستا بانه مې خښ شو په زړه تولي دلته ناځي اوس
څه به اوس نغمې دنيستان لمنه ونيسي



راشــه د بنګړو په شــړنګ کــې پټ کــړه مــا
لبږ په الهــامي اهنګ کــې پټ کــړه مــا
پریده چې سندره شم غــــزل شـــمــــه
سم د پیــغلتــوب په رنګ کــې پټ کــړه مــا
ســتــر ارمــان مــې امن دی پوره یې کــړه
ګــراني دلیــمــو په جنګ کــې پټ کــړه مــا
بیــا بانه مــضــراب کــړه کــه ویســتــمــه دې
اوس خــو دې د خیــال په چنګ کــې پټ کــړه مــا
ګــلــې ســـــــــرتــر پــا یــه اور وریــنــه یــې
ریږدمــه بس لبږ په ښنګ کــې پټ کــړه مــا

ستا یزداني هیلې چې نه شي پوره
د حورو چم کې دې طوفان راشي
ستوري دې هم بیا نامراده اوسي
په دغه ځمکه دې اسمان راشي



جینۍ د خدای او د رسول ومنه
په ءدې خبرو باندې تیره کیږده
خپلې نازکې شونډې څه له سیزې
بس په سندرو باندې تیره کیږده





د شونډو خيال راته طور ، ظور شي غرونه ، غرونه گرځي
دا هريمن ستر گو کې هم راته رنگونه گرځي
تا چې زما اغزي اغزي ژوندون بهار گڼلی
نن په لمبو کې راته هم بلا گلونه گرځي
واعظه ستا ريښتنولي به ميکده کې گورم
دلته مې خيال کې بوږنوونکي گومانونه گرځي
ما ويلي ته به يو زما په زړه کې ځاله لرې
ستا خو د کاڼو په رگ ، رگ کې تصويرونه گرځي
زما ځواني دي غزليزه کړه په پړک التفات
د پيمانو په څير مې ذهن کې لفظونه گرځي
هلته نن تريو تندي نيولی زماني ظالمې
دلته مې زړه کې تا را کړي پرهرونه گرځي
محبوبې هيڅ تعبير يې ستورو راته هم ونه کړ
زمونږ د شپو سره اوس بل رنگه خوبونه گرځي

# «ژوند»

ژوندون څــــــه دی ورتـه گـــــوره
جــــــوړول او مـــــــاتـول دي
يـــوه لــــنـــډه سـلـــسـلـــه ده
پـــــه بــــانــــه يــــي اوږدول دي



ژوند يو خـــوب ؤ گـــرځـــيـــده به
د عـــــدم پـه حــــافـظـه کــــي
لکـه وخت چي راحــــصـــــار شي
د صـنم پـه حـــــافـظـه کــــي



ژونـد يـو ســــتـــــوری د رڼا دی
ژونـد پـه مــــــثـل لـکـه گـل دی
دا تـپــــــــه د مــــلالـی ده
د يـو حــــسـن تـخــــيـل دی

ژوند د حسن عبادت دی
رنگ ونور یو ځای کول دي
اسماني د روح کتاب ته
د طاووس بنه کتل دي



سترگې وغړوه ژوند خو
د نظر یو پیغلتوب دی
کاینات پرې مسخر کړه
دا د مینې لیونتوب دی



سرگردانه لاروی یه
ژوند خو لارې جوړول دي
یوه لویه نندارده ده
د فطرت په سیل وتل دي

ژوند امید د یوه ستوري
چې د یار د سترګو نور شي
ژوند یو هڅه ده د کاڼي
چې جلوه د کوه طور شي



ژوند رڼا د چا د سترګو
په رنګونو کې مزل دی
د خوبونو له اسمانه
وریدلی یو غزل دی





د خیــرو شــر لښکرو منځ کــې یم انســان یمــه زه
دا دواړه زه یمــه ددې دواړو مــیــدان یمــه زه
یو د حــوا لوریې په تخت د خــلافت ناستــه ده
ګنې د هر تســخیــر نه لرې یو جــهــان یمــه زه
په تصــور کــې ګلی هم درنه په منډه ځــمــه
د بې وسی نه د نګهت غــوندې پریشــان یمــه زه
د عـــقل بام مــې د پرواز انتـــهــا ونه ګــڼــې
لا د فطرت د قـــوانینو بندیوان یمـــه زه
هره نقــشــه کــه د ځــان درکــړمــه نیــمګړې به وي
وجــود مــې لویه بادشــاهي ده لا روان یمــه زه
منم له یو خــوا د شـــرونو تذکــره به یمــه
کــه مــې له بلې ددې ولولې قــران یمــه زه



تانه دې تصوير په فاصله ګڼم

بيل به حقايق او فلسفه ګڼم

ته مې که د روح له کلي ووتې

بيا خو خپل وجود هم واهمه ګڼم

پام کوه هيڅ رنګ د هوس نه لرم

زه هره ښکلا د تا حصه ګڼم

دغسې بې لفظه مستول کوه

تازه د لاهوت د تار ځپه ګڼم

ستاد زړه خبرې ځي ليموته تل

ځکه خو دې مينه پښتنه ګڼم

ما په دريځه کې د زړه وليده

دانړۍ نمر مخې اوس زړه ګڼم

حسنه بې له عشقه ستا وجود نه ؤ

دا خو دې کمزورې بهانه ګڼم

پټ راته سروش په غوږ کې ووينل

نن خو دې سالکه زه «حمزه» ګڼم



څنګه ستوري د اسمان راته رالنډ شي
زه په څمکه او جانان راته رالنډ شي
يو ديوال وي چې ستا مخ زمانه پټ کړي
کله کله چې خپل ځان راته رالنډ شي
نن مې لاس دا هريمن په خوا غزېږي
ګوره نن خو به يزدان راته رالنډ شي
تصور د وروزو راشي بانه نه وي
غشي پاتې شي کمان راته رالنډ شي
شک مې راشي چې زه هم د دغه وخت يم
چې په مينه څوک انسان راته رالنډ شي
د هيڅ قام نه لرې شوې چيرته نه يم
څه ګناه ده! که افغان راته رالنډ شي



زه دې د رازونو ښــــار تـه بوتلـمـــه
خــوښــه مــې شـوې ته دفلسفــې پـه شــان
حــسن تـه دې گـــورم خــو حــواس زمــا
پټ کـــړي رانـه هرڅـــه د پردې پـه شــان
شـتــه يوه غــايه مـحـسـوسـوم يې زه
وينمــه ژونـدون د وســيلې پـه شــان
ته ديوه د فــخــر پس لـه مــرگــه يې
بلـه مــې يې زره کــې عـقــيدې پـه شــان
نـن يې لا مــحــدوده ادا کـــړې ده
ښکاري هره پيـــغلـه دهغـــې پـه شــان
گـــرانې چې زمــا دغـــزل نـور نـه شـــي
ښــه يې بې شــاعــره د تېــې پـه شــان
تـه بـه مــې منزل شــې د ژونـدون کــه نـه؟
پاتې مــې شـوڅــان د مــرحلې پـه شــان
خـدايزده دا بـه څـوک وه چې قــيـامت يې کـړ
ســتــرگــې خــويې وې د پښــتنې پـه شــان

## دپکتیا د غرونو ترتاثر لاندي لیکل شوي

# امیل

هلته ځواني ته رسیدلي جلال

بس د فطرت د لیونتوب سیمه وه

په «ادي[1]» د کښې وې د غره لمنې

څه دوړمو د پیغلتوب سیمه وه

***

د غره له سره چې مالاندې کتل

یو شین پټي ؤ هلته کوږ پروت ؤ

لکه چې ته یخني کې خوب وړې یې

په شنه جوړه کې داسې خوږ پروت ؤ

---

۱ - ادي گل یا «ادې» یو وړوکي، سپین نازک، او خوشبویه گل دي، چې د چارگل په څیر څلور پرې لري. د ادي په هکله یوه لنډۍ ده:

د جینۍ ونه د ادي ده

ادي چې باد وښوروي بوی یې راځینه

چې مې نظر شو ورته وړی شاهين
پرې د کوترو داسې خپل خپور شو
منظم لړ د مرغلرو غوندې
ستا په سينه باندې امېل خپور شو

***

د رقابت لمبې ستې کړ اسمان
د دنګو غرونو په سروريزې راغلې
لکه نا يني دې سنګار لپناره
په منده، منده ګوهر ريزې راغلې

***

همه تن سترګه د بادام غوندې شوم
واوره ګلونه نرګسي وريدل
چې په نازک بدن دې بوج رانه شي
لکه وريښم په تا غمي وريدل



په شـــونډو دې نن تاڅې بهـــانې زړې، زړې

را وګـرځـيـدې بيـرته زمـانې زړې، زړې

ماشوم ساقي ته ګوره اوس زما امتحان اخلي

شـــراب ئې نوي، نوي پيـمـــانې زړې زړې

بې ياره ځانځانې ده په دې نوې زمانه کـې

اوس نشـتــه په دې چم کـې يارانې زړې زړې

په ستورو کې به مونږه هم د مينې مشغولا کړه

کــه ورانې زمــونږ ته واى اشـيـانې زړې زړې

ثابته شوه چې زه هم د تير شوي وخت حصه يم

چې ګــورمــه په مـينه افســانې زړې زړې



# تعارف

زما مخې ته د يو نوي ځلمي شاعر غلام مصطفی سالک د اشعارو څه نمونې پرتې دي چې هغه ئې په يو مجموعه کښې د شائع کولو اراده لري.

پښتانه پخوا هم په شعر ډير مئين وو. او اوس هم په شعر ډير مئين دي. پښتو ټپې که د پښتونخوا د هرګوټ نه را جمع کړی شي نو د زرګونو صفحو کتابونه به ترې جوړ شي. چاربيتې، نيمکۍ، بدلې که په سينو کښې د فن شوې نه وای نو خدای خبر څومره لويه ذخيره به وه. د پښتنو محفلونه په دغو چاربيتو، ټپو اباد وو. د وخت سره سره د شعر رنګ او تکينک بدل شو. خو د شعر سره د پښتنو مينه بدله نه شوه او نن هم په مياشت دوه کښې د ځلمو شاعرانو يو دوه مجموعې زما د نظره تيريږي او خدای خبر څومره زما د نظره نه تيريږي. دا ټولې مجموعې په خپل خپل ځای قيمتي دي او د قام فکري، معاشرتي او جذباتي تربيت کښې مدد کوي. او دا ټول شاعران داسې دي چې د مبدأ فياض نه ئې يو تيز شعور او حساس طبعيت راوړی دی. او هغه احساس نور وته ور رسول غواړي.

بې شکه شعر د شعور نوم دی. خو دا شعور اظهار غواړي او اظهار

نه وو. او خپل وجود يې لرلو. هم هغه بلند تخيل، هم هغه ساده اظهار او هم هغه د ذاتي او قامي تشخصاتو آميزش. دا يو شعر وګورئ.

په تغافل ئي زه بې واکه نه شوم
ما د ساقي نه انتقام واخست

ساقي جام نيولی دی او ځان ئې ناجانه کړی دی چې اوس به بې اختياره منتونه زارۍ شروع کړي خو پښتون منتونه زارۍ نه کوي. ځان مې ټينګ کړو. بې واکه نه شوم او ساقی کچه پاتی شو بدل مې تر واخست.

دا ټول محاکات د دريو ټکونه جوړ دی. تغافل بې واکه او انتقام. که دې کښې يو ټکی کم شي نو شعر به بې معنی شي. دې دريو ټکو کښې د ذاتي تشخص احساس هم پروت دی او د قامي هم. او قامي احساس په ذاتي احساس کښې داسې نغښتی دی لکه په فرد کښې چې قام نغښتی وي.

د غزل رياضت الفاظو او اسلوب پورې محدود نه دې. ددې نه زيات رياضت د خيال تنظيم غواړي. د خيال فطرت دادی چې هغه خور وور ځي او په يو ځای ودري نه. سالک د خيال ددې فطرت نه د خپلې رضا کار اخلي. کله ئې په يو نقطه ودروي چې څومره پرې اوريدونکي

الفاظ او اسلوب غواړي او اسلوب د تراش و خراش لويه تجربه او د تجربو مسلسل زړه چاودون غواړي او دا زړه چاودون د چانه وشي او د چا نه ونه شي او دا د شاعرۍ په دنيا کښې د شته منداو نيست مند فرق پيدا کړي. ډيرو ځلمو شاعرانو ته خپلې ناکامې مينې داسې زړه چولې وي چې د نور چاودون ځای پکښې نه وي. او د اورد فراق يا ناځا په وصال په لذت والم کښې داسې ډوب شي چې دا خوا ديخوا کتو فرصت ونه مومي. او شعر د ځو احساساتو ساده اظهار پورې محدود پاتې شي. سالک ته دا احساس دی چې بې د زړه چاودون نه نه په اسلوب کښې لذت پيدا کيږي نه په احساساتو کښې تنوع او نه په خيال کښې معنويت.

ته دې تپو ته رنګ د مينې ورکړه
زه به غزل ته رياضت وکړمه

دې رياضت د سالک شعر د ځلمو د ډلې نه په فرق کړی دی. او مشرانو ته نزدې کيږي.

ما چې د ده اشعار وکتل نو د حمزه شنواري مرحوم د ځوانۍ دور راته را ياد شو. چې حمزه صاحب لا په وحدة الوجود کښې ورک شوی نه وو. او خپل وجود يې لرلو. هم هغه بلند تخيل، هم هغه ساده اظهار

د آب و ګل حیرت خانه کښې ستا د مخ په لټون

ما هم بلا ځلې نیم ګړی تصویرونه جوړ کړو



لاتې ماته ګوره تنده د ذوق نه ده

لا خو ورکې پسې ګرځي د انسان خیال

سالک د وطن په ارمان کښې دردناک نظمونه لیکلي دي. او حق لري. خو په غزل کښې د هغه انداز شاعرانه دی.

دا مونصیب دی چې ښارونه موکنډر دي اوس

خو پردی دشتې لا په مونږ باندې ودانې ښکاري



زما ستوری لا د بل په مدار ګرځي

خدای زده کله دافلک به مهربان شي



خدایه دا ولې پرې وریږي د سکروټو شیبې

په دې کوڅه خوله اسمانه وریده ګلونه

پوهیدی شي، پوهه شي لکه :

سرابي حسنه ته خبرئې په دې ؟
چې جل وهلي ته اوبه ښکاري

او کله داوریدونکي خیال ته اختیار ورکړي چې څومره خوریدی شي خور شي او د خپل فطرت نه لطف واخلي.

د کلی خلق که خبروي نجومیان به وي نو
گني په حال باند زمونږه خو خبر ستوري دي

خلق څه وائي چې بې د نجومیانو نه ئې بل څوک نه شي وئیلی ؟ دواړه بیل بیل ترنیمې شپې «اختر شماري» کوي ؟ – که دواړه په یو ځای په نیمه شپه ستورو ته گوري یا ستوري ورته گوري، خیال ته لار ازاده چې تر کومې ځي.

سالک د تصوف په کور کښې لوی شوی دی. د هغه په نظمونو دا اثر غالب دی. یو نظم خو خالص د یو وحدة الوجودي په حمایت کښې دی. خو هغه «د تلاش» د حد نه بهر نه دی لاړ. او خبره په دې ځای پاتې شوې ده.

---

**څلورم**

---

# د بنګړو غونډې خبرې

در سخن از عرفی و طالب ندارد کوتهی
عیب صایب این بود کز زمرهء اسلاف نیست

نن درې یمه ورځ ده چې د ګران وررور مصطفی سالک د شعرونو مجموعه راسره خبرې کوي، هر نظم او هره غزل یې لکه د عمر ونو اشنا چې مې له اوږده سفره راغلی وي بیا بیا راږغوم چې نورې هم راته تازه خبرې وکړي، چار دې یې ښه وي په خپله خوږه ژبه مې له ځانه سره د خیال هغو ټاپوګانو ته ورخیژوي چې د وززلرونکو ښاپیریو یې هم لانندارې نه دي په برخه شوې. هغه ډیر نالیدلي مناظر راوښیي او د هر ځای او هرڅه په حال مې خبر کړي خو د غزل په ژبه، د شور په ژبه، د حال په ژبه...

دی رښتیا وایي :

د ملکوت سندرو غوږ نیولی
ستا د بنګړو غونډې خبرې کوم

قلم او کاغذ مې را واخیستل چې د سالک له ځوانې شاعرۍ پلو

# د بنګړو غوندې خبرې

در سخن از عرفی وطالب ندارد کوتهی

عیب صایب این بود کز زمرهٔ اسلاف نیست

نن درې یمه ورځ ده چې د ګران ورور مصطفی سالک د شعرونو مجموعه راسره خبرې کوي، هر نظم او هره غزل یې لکه د عمر ونو اشنا چې مې له اوږده سفره راغلی وي بیا بیا راړغوم چې نورې هم راته تازه خبرې وکړي، چار دې یې ښه وي په خپله خوږه ژبه مې له ځانه سره د خیال هغو ټاپوګانو ته ورخیژوي چې د وزرلرونکو ښاپیریو یې هم لانندارې نه دي په برخه شوې. هغه ډیر نالیدلي مناظر راوښیي او د هر ځای او هرڅه په حال مې خبر کړي خو د غزل په ژبه، د شور په ژبه، د حال په ژبه...

دی رښتیا وایي:

د ملکوت سندرو غوږ نیولی

ستا د بنګړو غوندې خبرې کوم

قلم او کاغذ مې را واخیستل چې د سالک له ځوانې شاعرۍ پلو

پورته کړي چې تاسو ته هم د طبیعت هغه منظرې او د ښایست هغه کرشمې دروښیي کومو چې زما د ذوق سترګې سیرابې کړې دي. خو څه ووایم. په ټول کتاب یې تبصره ګرانه ده او « مشت نمونهٔ خروار » به یې له کومه ځایه را واخلم ؟

چې له سفره راشې، د کور په وره کې دې درې څلور لمسي په یوه وار منډه در واخلي، لاسونه درته جګ کړي چې در وایې خلې، ښکل یې کړې او ویې نازوې. څه به کوې، کوم یو به در اخلې چې د نورو په معصومانه خواهش دې ظلم نه وي کړی ؟ د سالک شعرونو زه هم دغسې متر دد کړم، نپوهیږم چې کوم واخلم او کوم پریږدم ؟ له کوم نظم او کوم بیت څخه یې سترګې پټې کړم او کومه نغمه یې نا اوریدلې وګڼم ؟...

درست خواږه دي، ټول د نازولو وړدي او واړه دیوه لاس ګوتې راته ښکاریږي.

غني کشمیري ویلي وو :

شعر اګر اعجاز ګردد بی بلند و پست نیست

اتم

دريد بيضا همه انگشتها يکدست نيست،

سمه خبره يې کړی ده چې د يدبيضا گوتې هم يو لاس نه دي خامخا به لنډې او اوږدې لري، ځکه چې گوتې دي. نو د سالک شعرونه به ولې له دې امره مستثنی وي هم به پست بيتونه لري هم بلند «البته دده د خپلو شعرونو په مقياس» خو ماته لکه د آسمان ستوري لوړ، روښه او ښکلي ښکاريږي کـه څوک ووايي چې ستوري هم ځينې رالنډدي او ځينې لرې، يعنې پست او بلند واقع شوي دي زه وايم د ستوريو پستي او بلندي په کم بينو سترگو او لنډ نظرنه معلوميږي، ښه وسايل او پوره علم او دقت غواړي.

د سالک دا شعرونه د خيال، مطلب او مضمون پشتوانه لري، د هنر په بازارونوکې يې د رالويدلو خطر له امکانه لرې ښکاريږي. تصوير ساز تخيل يې د تغزل په مرسته د بنگړو غوندې خبرې کوي، ځکه يې هر د ذوق او احساس خاوند خوښوي او بازار يې نه سړيږي. دا مجموعه د فورم او چوکاټ په اعتبار دوه ډوله شعرونه لري غزلې او نظمونه. موږ دلته پنځه لس نظمونه او اويا غزلې لولو، په دغو دواړو ډولونوکې که د نظمونو د تسلسل سرنگا د سړی پام په بله نه کړی د ژبې او خيالونو

له پلوه چندان توپیر نه سره لري. د نظمونو ژبه او محتوي يې هم د غزل ژبه او محتوي لري، چې دا پخپله د نظمونو ستره کامیابي ده. که غزل د نظم په ژبه وویله شي (لکه په زړو دیوانونو کې چې ډېرې غزلې لولو) چوکاټ به یې د غزل وي خو غزل به نه وي. برعکس که نظم تغزل ولري لکه د حمزه بابا مشهور نظم (راځه چې یوه جوړه کړو جونګړه په ځنګل کې) دا به نو د ادب شهکار وي.

په نظم کې عموماً یو خیال پالل کېږي، ښه نظم هغه دی چې خیال اوریدونکي ته منعکس کړای شي، تناسب، د زمان او مکان په نظر کې نیول، ښکلي تصویرونه پکې کارول، د الفاظو فصاحت او رواني ته پام کول او دغه شان شعر باید بې ضرورته یوې یا بلې خواته کوږ نه شي یعنی له موضوع خارج نشي. سستي یې عیب ګڼل کېږي او تر مطلب باید «و پوهیدې» پکې ډېر نه وي او لفظي او معنوي دورنګي باید ونه لري.

د ښه نظم اوږده او پسور دواړه د توجه وړ دي، هم یې باید عمودي خیال ښکلی وي هم یې افقي تصاویر باید ښایسته وي...

له ښه مرغه د سالک صاحب نظمونه زما په نظر په تول پوره خيژي

او د خو ځای نه په کې وینم. نظمونه غزلې نه دي چې له هر یوه څخه یو دوه بیته را واخلم، ستاسو په اجازه به صرف په یوه نظم یو ځل بیا هم نظر وښویوم، لومړی نظم به یې را واخلم چې عنوان یې دی (په کربلا کې تږکیدلی ګل).

شاعر د وطن یوې پیغلې ته چې وطن یادوي، د خپلو خپلوانو ویر کوي او د نجونو د میری په فریاد کومه چې د خپلو همځولو په خازو پر یوزي ساندې وایې، طبعاً د ښکلې غاړې ساندې هم سندرې شي د خدای او د رسول روی وړاندې کوي او ورته وایې:

جینۍ د خدای او د روسول ومنه
په دې خبرو باندې تیره کیږده
خپلې نازکې شونډې څه له سیزې
بس په سندرو باندې تیره کیږده

دا لومړی بند په مناسبو ځایونو کې څلور ځایه نور هم تکراریږي.

په دې نظم کې ډیر ښه ترکیبونه او ښایسته تصویرونه کار شوي دي، لکه: په خبرو تیره ږدول، په سندرو د نازکو شونډو سوځیدل، په ساندو کې سندرې لړل د زړه د تارونو کمزوري او د ژوند درباب

ماتیدل، د گل په پاڼو د افسانو سوځیدل، د نرګس مړینه، دسترګو د میخانو سوځیدل، د همځولو په خازو غوړیدل، دابلیس په دروازو سرلګول، په کربلا کې ټوکیدلی ګل، د پر هر جلي زړه رڼا ته ژوند تیرول، د خزان لوټو ته دلالونو تلل، له فرښتو څخه د آمین هیریدل، په دوزخ کې جنتي خوبونه لیدل، یزداني هیلې او د حور و چم.

په پورتنیو تصویرونو کې شاعر ډیرو شیانو ته تشخص ورکوي، بیروحه شیان ژوندي او د شعور او احساس خاوندان کړي او ډیر ذهني حقایق له حسی شیانو سره ماهرانه غاړه غړې کړي او له دواړو یوګډ تصویر وباسي.

د سالک نور نظمونه هم داسې دي.

اوس به یې په غزلو یو نظر واچوو : په غزلو کې یې هم تغزل موجو نه وهي، هم تخیل او مضمون آفریني. هم چستي لري، هم پوخوالی، هم تصویرونه لري، هم اندیښنې، هم د فلسفې څرک پکې ځلیږي هم د عرفان یعني د ښو غزلو اکثر صفات پکې راغونډ شوي دي.

جنګ او امن لکه تیاره او رڼا ضد و نقیض معلومیږي خو شاعر مو د جنګ په تور تم کې د امن ډیوې بلې ویني. دغه شریې ځکه خوښ دی

# دطاووس بڼکه



مصطفی سالک

ماتیدل، د گل په پاڼو د افسانو سوځیدل، د نرگس مړینه، دسترگو د میخانو سوځیدل، د همځولو په خازو غوړیدل، دابلیس په دروازو سرلگول، په کربلا کې توکیدلی گل، د پر هر جلي زړه رڼا ته ژوند تیرول، د خزان لوڼو ته دلالونو تلل، له فرښتو څخه د آمین هیریدل، په دوزخ کې جنتي خوبونه لیدل، یزداني هیلې او د حور و چم.

په پورتنیو تصویرونو کې شاعر ډیرو شیانو ته تشخص ورکوي، بیروحه شیان ژوندي او د شعور او احساس خاوندان کړي او ډیر ذهني حقایق له حسي شیانو سره ماهرانه غاړه غړې کړي او له دواړو یوگډ تصویر وباسي.

د سالک نور نظمونه هم داسې دي.

اوس به یې په غزلو یو نظر واچوو : په غزلو کې یې هم تغزل موجو نه وهي، هم تخیل او مضمون آفریني. هم چستي لري، هم پوخوالی، هم تصویرونه لري، هم اندیښنې، هم د فلسفې څرک پکې ځلیږي هم د عرفان یعنې د ښو غزلو اکثر صفات پکې راغونډ شوي دي.

جنگ او امن لکه تیاره او رڼا ضد و نقیض معلومیږي خو شاعر مو د جنگ په تور تم کې دامن ډیوې بلېویني. دغه شریې ځکه خوښ دی

راځي وختونه، زه منم خو مازيګر نه راځي

يو بل بيت يې هم د پورتني بيت خبره تائيد وي وايي :

لمره زرشه، اور ورين شه، بيا ګودر لمبه لمبه کړه

دا دوزخ زما جنت دی، دا کوثر زما خوښيږي

سالک ته د دايمي نور او تاو د فوران له مخې چې لري يې د معشوقې سترګې آتشکدې او سينه يې د «اوستا» کتاب ښکاريږي وايي کله چې يې ګريوان لکه د اوستا کتاب پرانيزم د زردشت روح يې د ليمو په اور يا اور تون کې وموسيږي.

روح د زردشت يې د ليمو په اور کې وموسيږي

چې يې ګريوان لکه کتاب د اوستا پرانيزم

مور که هر څو د نن خلک يو، زمونږ اروا وې ډيرې زړې دي، زمونږ په رګونو کې د سلګونو پيړيو پخوا تير شويو نيکونو وينې بهيږي او زمونږ تحت الشعور د ډيرو پخوانيو پيښو کيسې او خاطرې ساتلې دي په دې اعتبار مونږ هم د هغو زمانو نه ډير پردي نه يو.

ثابته شوه چې زه هم د تير شوي وخت حصه يم

سترګو جنګ ضروري امر ګڼي. له بلې خوا شاعر کنایتاً دا خبره هم تر ژبه لاندې اړوي چې روغه جوړه د سترګو په جنګولو یعنې د مذاکراتو په ذریعه مینځ ته راتلای شي.

مونږ ډېر خوبونه وینو، اکثر را څخه هېر شي، هېر شوی خوب به څه تعبیر وو؟ سالک وایي:

ویې لیدم، هېرېې کړمه، ختم شوم
خوب یمه تعبیر نه پاتې شوی یم

زمان په تېره نه دربړي خوځینې زمانې او موسمي کیفیتونه د حالاتو له بدلون سره له مینځه ځي. مازدیګریو ښکلی، شاعرانه وخت دی، د هر چا خوښیږي خو د مین سړي له دې امله ډېر خوښیږي چې د ښکلیو نجونو په ورتلو سره د ګودر غاړه د کوثر غاړه شي اوس چې شرایط نور شول او چنېو پیغلو له ګودرونو پښې ونیولې که زر ځلې هم مازدیګر راشي شاعر وایي نه راځي، ځکه چې مازدیګر خو د پیغلو په مخ مازدیګر وو.

اوس چې جوپې د مستو پیغلو په ګودر نه راځي

---

ځوارلسم

---

دا د خیر او شر تلل هم معما ده

اهریمن راته هنداره دیزان شي

دی فضا داسې سیلی لیدلي نه ده

چې زمونږه آشیانې یې ورانې نه کړي

چیرته ځم او ولې ځم ؟ خوشبو غوندې خبر نه یم

هسې څو لحظو ته ګلې ستا په غیږ کې پریوتم

د ګوګل دنیا مې پتېه پتېه سوځي

ښکاري اوس به سر بلند لکه چنار شم

ښکلا که نه وای تصور د بدرنګۍ به نه وای

دا غرونه غرونه سیوري تول د چاله نوره ښکاري

یواځې ستا ښایست خو نه دی چې جوړ کړی مې دی

تول کاینات مې د ککیو په مدار تاویږي

زه حقیقت او نه مجا غواړم

د خپل وجود د رنه جواز غواړم

تیپې به خپل ګودرنه تولې کړمه

اووه لسم

چې گــورمــه په مــینه افــســانې زړې زړې

حسن ته باید د مین له سترګو وکتل شي. بیدل دامطلب داسې بیانوي :

اگـــــر نظـاره ء گل مـی تـوان کـــــرد
وطـن درچـشـم بـلـبـل مـی تـوان کــــــرد

خو سالک صاحب وایي چې د ګل پر آئینه باندې رنګ یو غبار دی، د پسرلي ښکلا نه ښکاروي باید د بلبل په آئینه کې ورته وکتل شي :

دا رنګ خـو یو غـبـار دی دهرګل په آئینه کــې
ښکلاد پســرلي ګــوره د بلبل په آئینه کـــې

په پای کې باید ووایم ښه شعر د طبعیت په شان دی چې هر وخت نوي نعمتونه او نوي ښایستونه لري او نوې نوې ښیګنې په کې لیدلې کیږي. ما د سالک شعرونه دوه درې ځلې له سره ترپایه ولوستل، هر ځل مې پکې نوې نوې خبرې او نوې نوې خوبۍ ولیدلې، ځکه ورته د طبعیت شاعري او ښه شاعري وایم.

د پورتنۍ ادعا لپاره یې څو بیتونه د سند په توګه راوړم :

وریځـــې په کــوم وطن خـــورې، چیـــر ته باران راځـي
پـل طراط نـه د نـظر یـې ړومـــــــبی زه پـریوتم
چې پیـــغلتـــوب یې د لیـــمـــو نه جنتـــونه جوړ کړه
اوس د لـمـــبـــو په جـای نمـاز لاس په نـامـــه ولاړ دی
زړه می پتنګ شـــو په څـراغ پســې یې نیت کـړی دی
مـــــینه مـــــې د ســــــرا و تـال راوړې له ازلـه ده
خـــور د ســریندې یې په نغــمــومـــې هر کلی کـــوه
هار د ســـپـــینو لیـــچـــو دې زمـــا په غـــاړه واچوه
شــرنګ پســـې یې مـړیم په بنګړو مــې هر کلی کـــوه
په هوا کـــــې یې ښکالو د قـــــدمــــــونـو
د بـنـګـړو د ترانــې غـــــــونـدې تـیــــــریږي
دا هغـــــه ده چې لـمـــــده ګــــــودرنه راغلـه
کـــه په مـــیـــو لمـــبـــیدلی دیزان خـــیـــال؟
اوښـکو مـــــې تـاویز د نظر ومـــــینځـــــه
نـورنـو دتـاثیـــــــر نه پاتی شـــــــوی یم
د راتـلو لار کـــــې می ژړل لکه د وریځـــــې ورتـه
لیلی د برق پر آس ســپــره وه لاړه، تیـــره شـولـه
هغـه بی وختـه به چې ســتـا تصور ویښ شـو پکې

# د کتاب پیژندنه




| | |
|---|---|
| د کتاب نوم | : د طاووس بڼکه |
| شاعر | : غلام مصطفی «سالک» |
| خپرندوی | : د ناهید کتاب خپرولو موسسه |
| د خپرونو نومره | : ۱۵ |
| د خپریدو نیټه | : وږی ۱۳۷۷ - سپتمبر ۱۹۹۸ |
| چاپ ځای | : دانش کتابخانه پیښور |
| تیراژ | : ۱۰۰۰ |
| د کمپیوټر سمبالوونکی | : محمد ابراهیم «امیری» |
| د پښتۍ انځورګر | : استاد حسن پاوند |
| مهتمم | : کاروان |




وریځې په کوم وطن خورې، چیرته باران راځي
پل طراط نه د نظر یې ړومبی زه پریوتم
چې پیغلتوب یې د لیمو نه جنتونه جوړ کړه
اوس د لمبو په جای نماز لاس په نامه ولاړ دی
زړه می پتنګ شو په څراغ پسې یې نیت کړی دی
مینه مې د سراو تال راوړې له ازله ده
خور د سریندې یې په نغمومې هرکلی کوه
هار د سپینو لیچو دې زما په غاړه واچوه
شرنګ پسې یې مریم په بنګړو مې هرکلی کوه
په هوا کې یې ښکالو د قدمونو
د بنګړو د ترانې غوندې تیریږي
دا هغه ده چې لمده ګودرنه راغله
که په میو لمبیدلی دیزان خیال ؟
اوښکو مې تاویز د نظر و مینځه
نور نو د تاثیر نه پاتی شوی یم
د راتلو لار کې می ژړل لکه د وریځې ورته
لیلی د برق پر آس سپره وه لاړه، تیره شوله
هغه بی وخته به چې ستا تصور ویښ شو پکې

د زړه پر بام مې د جذباتو درزا ډېره ښه وه
زه به د حورې غېږ تنګ شمه فریاد به وکړم
هلته خو تنده وه، لټون وو، دنیا ډېره ښه وه
مست یې شباب، خیال شراب غږ یې رباب غوندې وو
جونې خو ډېرې مالیدلې دی دا ډېره ښه وه
ځار دې د لیمو نه زه خو زړه ترینه روان کړمه
بیرته یې داښکلې ماشومان لمنه وینسي
پیغام د مینې دې لیکلی د موسکا په پاڼو
ته صحیفه د رنګ و نور یې د ګلاب غوندې یې

دا وو د ګران ورور سالک په دغه مجموعه یو ځغلنده نظر. خدای دې وکړي چې درست لوستونکي له دې شعرونه هغو مره خوند واخلي څومره چې ما واخیست. او خدای دې سالک صاحب او زموږ نورو ځوانو شاعرانو او لیکوالانو ته توفیق ورکړي چې د پښتو ادب بیرته پاته شوې قافله په خپل همت منزل مقصود ته ورسوي.

ومن الله التوفیق

محمد صدیق پسرلی
۱۳/٦/۱۹۹۸

# زیری مې دربانديٍ

د طاووس ښکه مې په لاس کې ده او د سندرو په یوه ښایستو کې جزیره کې ګرځم. د یوه مرمو زترنم نازکې څپې مې د ذوق له تږو ږیوالونو سره لګیږي، چې دشنو بنګړو د شرنګا شرنګ په شان خوږې لګیږي. له ځانه ښکلې پوښتنې کوم یوه د پاسه سل پوښتنې :

- مصطفی څنګه سالک شو او سالک څنګه شاعر شو ؟؟ د چا په بدرګه کښې د فلسفې له شکمنو غرونو راتیر شو او دچا په لمسه د شوپنهاور له تیولګي نه راپټ شو ؟؟ څنګه د حضرت حمزه بابا او نورو د رنګونو په برېوکې کښې دخپل ځان او خپل رنګ په لټه شو ؟؟... او څنګه یې د آسمان پر ځای پر خاورینه ځمکه یو ګرځنده ستوری پیدا کړ... ددې ښکلیو یوی باندې سل پوښتنو ځواب د مینې غونډې روښانه دی.

مصطفی لاماشوم ؤ چې د وطن پر کلیو، ښارونو او بانډو یې د اور او پولادو تونده سیلۍ راخوره شوه. یوه پردي جهنمي نظام یې جنتي شیبې او ماشوم پتپتنانې وترورل. د خپل مجاهد، سالک او شاعر پلار

ترسیوری لاندې دباګرام سندریزي غیبرې ته راغی. مکتب ته لاړ،
پوهنتون یې ولوست، د ادبیاتو استاد شو، فلسفې یې ولوستی د شعر
او هنر کتابونه یې ملګري شول، خود پلار دښنې ونې خوږ سیوری یې د
تل لپاره له سره لرې شو. غمونو یې زړه ته لمدې غوټې واچولې.
دې یتیم زلمي کله د اوښکو په ګوتو او کله هم د شعر په مهینو ګوتو د
خپل زړه د غوټو د پرانیستلو هڅه وکړه. د شعرونو په نامه یې بلا
کاغذونه تور کړل خو زړه یې اوبه پرې ونه څښلې. دا شعرونه یې نه په
ورځپاڼو او مجلو کې خپاره کړل او نه یې هم په ادبي غونډو کې
ولوستل. مصطفی سالک په دې وخت کې د ځینو کلاسیکو او معاصرو
شاعرانو د لوړو شعرونو د ښکلاییز کیفیت خوند څکلی ؤ. پیکه
خوندونو یې ذوق نه تسکیناوه. شاعرانه طبعې یې دغرني ګوربت په
څیر یوې لرې او دنګې څوکې ته د الوت نیت کړی و.

او دادی سالک د سندرو او ښایست د دنګو غرونو یوه دنګه څوکه
فتحه کړه، چې ترلاس لاندې سیمې یې ورته شاعرانه بریښي. شاعر د
خپل شعر پر سیمه ذ شعر جنډه رپوي او خپلې مینې ته د ښایست لویه
سلامي نیسي:

- د غـــره لـه ســـره چې مـــالانـدی کـــتـل
یـو شـــین پـتـې ؤ هـلـتـــه کـــوږ پـروت ؤ
لـکـه چې تـه یـخنـی کـــې خـــوب وړې وې
پـه ښـنـه جـوړه کـــې داســـې خـــوږ پـروت ؤ
چې مـــې نـظـر شـــو ورتـه وړی شـــاهـیـن
پـرې د کـــوتـر و داســـې خـپـل خـــپـور شـو
مـنـظـم لـړ د مـــرغـلـرو غـــونـدې
ســـتـا پـه ســـیـنـه بـانـدې امـېـل خـــپـور شـو

د طاووس ښکـه د رنګونو هنداره ده. د غـزلـونـو رنګ جـدا او د نظمونو رنګ جدا دی. خو دا رنګونه له یو بل سره خپلوي پالي او یو بل ته په مینه مینه د ښایست لاسونه ورکوي. او پدې ډول د بیلتانه بریدونو ته ماتې ورکوي. غزلونه یې پاخه دي. په یونیم غزل کې یې ښایي ډیر د حمزه بابا او لږ د یو نیم بل معاصر شاعر درنګ څرک و برینبی. پردې سربیره داسې ښایستو کي غزل لري چې خوند اورنګ ته به یې په ښکلا مین حیران شي. لاندیني غزل ته یې که د زړه او ذوق په سترګو په ځیر وګورئ ښایي د شاعرانه الهام تاپه یې پر تنډې ووینئ.

---

**درویشتم**

---

د دې غزل یو دوه بیتونه را اخلم :

یاد به دې وي وخته پیمانه زما په لاس کې وه
ستوري په ورغوي زمانه زما په لاس کې وه
زړه مې ستا کیږدۍ لره دروړی ؤ په موتي کې
ښې پولۍ پولۍ وي در دانه زما په لاس کې وه ...

سالک د طاووس د ښکې نژدې ټول نظمونه او د دې ټولګې ډېرې غزلې د یو څو میاشتو په موده کې لیکلي دي. د شاعر د زړه په ښیښه کې په اوږده خوب خوبولې ښاپیرۍ ناڅاپه راویښه شوې ده. یوه مسته غځونه یې کړې ده او خپل تصویر یې د یوې ژوندۍ او ګرځندې هندارې په غیږ کې ورښودلی دی. دې تاندې او تازه راویښې شوې ښاپیرۍ په سختې سخاوتمندۍ سره شاعر په ښکلیو نغمو نمانځلی دی. راځئ چې د سالک د شعر د ښاپیرۍ دا پیرزوینه د غزلونو په ځینو خوږو بیتونو کې وګورو.

پیغلتوب دې ډېر د شګو کور ګي ړنګ کړل
ستا پر شونډو بهانې یې ورانې نه کړې

**څلرویشتم**

## اهداء :

د ښایست د هغه تصور په نوم چې د زړه په تاخ کې مې د څراغ په څیر بل دی !

د دې غزل یو دوه بیتونه را اخلم :

یاد به دې وي وخته پیمانه زما په لاس کې وه
ستوری په ورغوي زمانه زما په لاس کې وه
زړه مې ستا کیږدی لره دروړی ؤ په موټې کې
ښې پولۍ پولۍ وي دردانه زما په لاس کې وه . . .

سالک د طاووس د ښکې نژدې ټول نظمونه او د دې ټولګې ډیرې غزلې د یو څو میاشتو په موده کې لیکلي دي. د شاعر د زړه په ښیښه کې په اوږده خوب خوبولې ښاپیرۍ ناڅاپه راویښه شوې ده. یوه مسته غځونه یې کړې ده او خپل تصویر یې د یوې ژوندۍ او ګرځندې هندارې په غیږ کې ورښودلی دی. دې تاندې او تازه راویښې شوې ښاپیرۍ په سختې سخاوتمندۍ سره شاعر په ښکلیو نغمو نسانځلی دی. راځئ چې د سالک د شعر د ښاپیرۍ دا پیرزوینه د غزلونو په ځینو خوږو بیتونو کې وګورو.

پیغلتوب دې ډیرد شګو کورګي رنګ کړل
ستا پر شونډو بهانې یې ورانې نه کړې

**ځلرویشتم**

جوړ پیغلتوب سره ډیریږي استعمار د حسن
چې ورځ تر ورځې لویوي د بهانې بریدونه
ستا خونړي بانه یې هم په ننګه ودریدل
جانانه اوس به له حالاتو نه جنګ وبایلمه
عشقه ته د ورځې شمعه بله کړې
اوښکې یې زما پر مزار وڅاڅي
نن یې د جونګړې رڼا تته ده
ستوري دې زمونږه پر ښار وڅاڅي
مست یې شباب خیال یې شراب غږیې رباب غوندې ؤ
جوني خو ډیرې مالیدلې دي، دا ډیره ښه وه
زما ځواني دې غزلیزه کړه په پړک التفات
د پیمانو په څیر مې ذهن کښې لفظونه ګرځي
زه دې د رازونو ښار ته بوتلمه
خوښه مې شوې ته د فلسفې په شان

مـاله بنګړو او له کـمـخـو نه فلسـفـه زده کـړې

کـه دلتـه عـامـه شـوه نـو بیـا بـه شـور و شـر نـه راځـي

لاس نـه بنـګـړي او نـه د غـــاړې نـه یـې هـار تـاویـږي

د ګـل وجـــود نـه اوس دره لـکـه د مـــــار تـاویـږي

ښـا پـیـري پـه خـوب دې وینمـه د یـو ، تـاوږي

څـوک چنګیــز رانـه کـتــاب د او ســتــا وړي

مـا شــراب د نـرګـسـي سـتـرګـو نـوش کـړي

د خـوشـبـو غـونـدې بـې هـوشـه مـې هـواوړي

زړه مـې غـرشـو تـه سـپـوږمـۍ د څـوارلـسمـې

د غـزل پـیـغلـې دې بـوتـې د سـرمـا وړي

زنده ګـي یـوه مـرمـوزه مـعـمـا وه

تـرینـه وواتـه ابـهـام پـه مـیکـده کـې

روایتـی سـلام دوه درې د خـپـل مطلب خـبـرې

دومـره راغـونډ دي اوس زمـونږ دیـارانـې بـریـدونـه

شپږویشتم

... چا به پر بام گلو کښې لاس واهه
پرې نګهتونه د لالي وریدل
کله ناکله به په تنګو کوڅو
پاس له آسمانه کشمالي وریدل

د همدې نظم یوه بله کړۍ د یوې حیاناکې افغانې مینې ډېر اصیل انځور لري. دلته د بیلتون یو داسې مقدس برید بریښي چې سل و صاله ترې لوګې شه.

هر ماز دیګر به د ګودر په طرف
یوه د زانو سلسله وه هلته
بازان به لوړو باندې لنړې ناستوو
خو دې حیا به فاصله وه هلته

په همدې بند پسې بل بند ډېره نازکه او ډېره نادره انځور ګري لري :

– په پانه پانه چې یې ډېر ښه لیک ؤ
او بو به داسې سره ګلونه راوړل
یوه کشتۍ چې له کاغذ جوړه وه
هغې د عطرو بوتلونه راوړل

نن يې لامحدوده ادا کړې ده
ښکاري هره پېغله د هغې په شان
د هغه بام د پاسه لمر نن عجيبه راوخوت
پخوا خوده باندې دا زلفې سيورى نه وو
وړاندې مې زړه داسې د ښکليو مينې نه ؤ وړى
حسن کښې زور نه ؤ که مونږه دومره کمزوري نه وو

دا خو وود سالک له غزلبڼ نه يو يو ګل .

د سالک د شعر پنځه څوکى ستورى تول د مينې پر مدار راڅرخي. که ددې ستوري څلور څوکې د مينې د مدار زړه ته د رڼا لاسونه ورغځوي خو يوه څوکه يې داسې هم ده چې زمونږ د هيواد د غميزې تندر نيولې سپوږمۍ ته ورغځيدلې ده.

د فطرت البم ښايسته نظم يې هغه دوه مخې ځوندوره هنداره ده چې په يوه مخ کې يې د هيواد پرون او په بل مخ کې يې نن ښکاري.

---

**اته ويشتم**

---

... څه کاینات نه دباندې ووځو
چې د انسان د خیال څپه نه ورځي
یو داسې ستوري کې د نور به اوسو
چې هیڅ آدم ته یې نامه نه ورځي

د ازلي مینه شعر په سر کې داسې وایي

لا زمانه دخدای په خیال کې نه وه
ما سندریز شان پیغلتوب کې لیدې
زه چې اوده وم د عدم غېږه کې
د هغې شپې نه مې په خوب کې لیدې

د نارنج گلونه په شعر کې هم دا شاعرانه لیونتوب نه پرېږدي :

... زه قسم ستا په رنا خورم
په ازل کې ما لیدلې
هو بهو لکه هم داسې
چې غزل کې ما لیدلې

د جبرائیل د خولې خبره نومې شعر کې خوشحال شان لیونتوب

... څه کاینات و نه د باندې وو څو
چې د انسان د خیال څپه نه ورځي
یو داسې ستورې کې د نور به اوسو
چې هیڅ آدم ته یې نامه نه ورځي

د ازلي مینه شعر په سرکې داسې وایي

لا زمانه د خدای په خیال کې نه وه
ما سندریز شان پیغلتوب کې لیدې
زه چې اوده وم د عدم غیږه کې
د هغې شپې نه مې په خوب کې لیدې

د نارنج گلونه په شعر کې هم دا شاعرانه لیونتوب نه پریږدي :

... زه قسم ستا په رښا خورم
په ازل کې مالیدلې
هو بهو لکه هم داسې
چې غزل کې مالیدلې

د جبرائیل د خولې خبره نومې شعر کې خو څه بل شان لیونتوب

کوي. راځئ دا به يې منصوري ليونتوب وبولو :

... وايي اور بل يې لکه شپه د قدر
وايي سجده باندې جهان راولي
د پرښتو به درته څه ووايم
ږومبي آسمان ته به يزدان راولي

د همدې شعر په يوه بل بند کې چې د جنون اور يې سربېري يوه شاعرانه او نادره تابلو کاږي :

... وايي بانه کاږه واږه د هغې
سم بارانونه په ځيگر جوړوي
جواز يې نه شته که يې غشي گني
له ځايه نه خوځي پر هر جوړوي

د اراده په نوم په اوږده بحر کې مثنوي يې فلسفي افکار دي چې شاعر ښکلی شاعرانه کړي دي. يو بې خبره لا روی له خپل جلال او جمال نه خبروي او د خپل شعر په لاره يې د ښکلا پړاو ته په بدرگه رسوي.

دا نغمې د بلبلانو ، د بنګړیو ګونګرو ګانو
دا د زړکو سوې چیغې ، د آواز د تارو ګانو
دا له بله ځایه نه دي ، ستا حواسو کې مستي ده
بس که دغه درنه لاړه ، بوړنوونکي خاموشي ده

بې خبره لاروی دلته پرېږدو ، یو څو ګامه بیرته راګرځو او د بودا ماتې کوپړۍ ته ودرېږو ، ګورو چې شاعر څه راز و نیاز ورسره کوي؟ شاعر د ښکلا لاروی دی ، د چا په خبرو پسې نه ګرځي ، یوه ښکلې ورکه لټوي. شاعر ته ښکلا ، ښکلا ده ، که د نورو په نظر ګنهګاره ښکلا وي او که ثوابي ښکلا وي دی د زړه خواله ورسره کوي. دلته هم شاعر په ډېرې عارفانه عیارۍ سره د بودا له کوپړۍ سره خواله کوي :

یه د بودا د بدن ستړې کوپړۍ
تا سره څومره محبت شوی دی
دا ولې بیا له یې له نورې تنې
چې دا په څه درنه نفرت شوی دی
... نن راته وکړه د خپل حال په ژبه

تـه د خـــــپـل روح او د رنـا خـــــبـــــرې
هغـــــه مـلـنـګ شـــــهـــــزاده څـــــه ؤ د هـنـد
د هغـــــه پـيــــر هغـــــه بـودا خـــــبـــــرې
... وايـي چـې ډير د رتـه مـــــغـــــرور ونـجـــــونـو
پـه تـورو خــــــاورو کــــــې تـنـدي ايـښـي دي
د نـنـګـرهـار يـوه هـنـرمـنـد لـيـــــــــونـي
درتـه پـه ســـــتـــــرګـــــو کـــــې غـــــمـي ايـښـي دي

د سالک په شاعرۍ کې دومره ډير د خوځاي نه شته خو هغه د چا خبره چې ګل بې خاله نه وي. راځئ د نظر ماتي لپاره د دې ګل پر خالونو يو څه وو وايو.

په دې شاعرۍ کې توري، کليمات او ترکيبونه سره لاس په لاس دي او د شاعر له خيال، انځورونو او شاعرانه بيان ځني چاپيره ولاړ دي.

خو دا ټول بايد يو بل کلک په غيږ کې سره ونيسي. چې دا غاړه وتنه پر قافيو، رديفونو او نورو ظاهري وزنونو سربيره څپانده، شرنګيدلي، مستانه او زنګيدلي وزن ور زيا توي. دا غاړه وتنه د شعرونو د مسرو په منځ منځ کې د يوه مهين او مرموز سروتال رنګونه هم شيندي.

د شعرونو دغه دروني وزن د يوې ښکلې او ماهرې نڅا ګرې د پايزيبو هغې نرۍ شرنګا ته ورته دی چې نڅا ګره يې د نورې موسيقۍ له ضرب سره په ناز ناز شرنګوي.

د طاووس بڼکه د طاووس د بڼکې غوندې د ښکلې شاعرۍ مجموعه ده. په دې مجموعه کې شاعر د شرقي مينې يو منلی مريد دی. نواې ګرانو لوستونکو ! په بسم الله سره مو د زړونو کتابونه پرانيزئ. د مينې باب پکې راواړوئ، د طاووس بڼکه پکې کيږدئ.

او زيری مې درباندې !

پير محمد کاروان

پيښور، ناصر باغ نوی کمپ

۷-۷-۱۹۹۸ د مولود شريف مبارکه شپه



د خپل خوږ مشر محمد صدیق پسرلي صاحب، ګران استاد سید تقویم الحق کاکاخېل صاحب، محبوب ملګري پیر محمد کاروان، هنرپال اشنا اسدالله صافي او عزتمن دوست جنرال عبدالصمد مومند او د بهیر له نورو یارانو څخه د لیکنو، مرستې او ډاډ ګېرنې لپاره د زړه له تله مننه کوم د استاد محمد حسن پاوند صاحب نه هم مننه چې د خپلو ګوتو په هنري انځور یې د طاووس ښکې ته رنګ وباخښه. له ګران ورور محمد ابراهیم «امیري» نه یوه دنیا مننه چې په کمپیوتر کې یې زما شعرونو ته کتابي رنګ ورکړ.

په درنښت او مینه